# مصطلح الحدیث په پښتو ژبه کی

# اطيب المنح في علم المصطلح

تاليف: الشيخ عبدالمحسن العباد
والشيخ عبدالمحسن المراد

ژباړه: عامر حسن

## د مصطلح حدیث تعریف ،موضوع او فایده

**تعریف:** دداسی اصولو او قواعدو علم دی چی هغی سره د مقبول او مردود په اعتبار سره د حدیث د سند او متن حالات معلومولی شی

**موضوع :** سند او متن د قبلولو یا ردکولو په اعتبار سره

**غرض او مقصد :** د صحیح احادیثو د ضعیف احادیثو نه جداکول

## حدیث خبر اثر او نور اصطلاحات

**حدیث:** د حدیث لغوی معنی نوی شی دی او ددی جمع احادیث راځی چی د قیاس خلاف ده

اصطلاحی تعریف : هغه قول فعل تقریر یا خلقی یا خلقی صفت چی د نبی کریم صلی الله علیه وسلم طرفته منسوب وی

**خبر :** د خبر لغوی معنی نبا یعنی خبر ورکول دی

اصطلاحی تعریف ددی دری تعریفونه شوی دی

۱:حدیث د خبر هم معنی دی

۲ ددواړو مفهوم د یو بل بر عکس دی یعنی حدیث هغه چی نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه منقول وی او خبر هغه چی د بل چا نه منقول وی

۳ : پدواړوکی د عموم خصوص مطلق نسبت دی یعنی حدیث هغه چی صرف د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه نقل وی او خبر هغه چی یا د نبی علیه السلام نه نقل وی یا د بل چا نه

**اثر :** د اثر لغوی معنی بقیه الشی یعنی د یو شی باقی پاتی شوی حصه

اصطلاحی تعریف : هغه اقوال یا افعال چی د صحابه او تابعینو څخه منقول وی

او یو قول دا هم دی چی اثر د حدیث مترادف دی

**حدیث قدسی:** هغه حدیث چی د نبی کریم صلی الله علیه السلام نه داسی نقل وی چی هغه د الله طرفته یی نسبت کوی

په حدیث قدسی او قران کریم کی فرق دادی چی د قران الفاظ معجزه ده تلاوت یی عبادت او د ثبوت لپاره یی تواتر شرط دی

البته حدیث قدسی د اعجاز صفت نه لری نه ددی تلاوت عبادت دی او نه یی د ثبوت لپاره تلاوت شرط دی

احادیث قدسیه د ۱۰۰ نه ډیر دی چی د هغی نه یو دادی

ابو ذر رضی الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوی هغه دالله نه روایت کوی الله فرمایی ای زما بنده ګانو ما پخپل ځان باندی ظلم حرام کړی دی او په تاسو می هم حرام کړی د ی پس تاسو ظلم مه کوی

د حدیث قدسی روایت کولو لپاره دوه صیغی استعمالولی شی

۱ قال رسول الله صلی الله علیه وسلم فیما یرویه عن ربه عزوجل

یعنی نبی کریم صلی الله علیه وسلم هغه خبره بیان کړی چی د الله تعالی نه یی روایت کوی

۲ : قال الله تعالی فیما رواه عنه رسوله صلی الله علیه وسلم

یعنی الله تعالی هغه خبره بیان کړی چی د هغه نه د هغه رسول روایت کړی ده

ددواړو صیغو معنی یوه ده

سند د نون په زبر سره معتمد یعنی هغه چی اعتماد پری کولی شی

اصطلاحی معنی د رواتو هغه سلسله چی متن ته رسول کوی

**متن :** لغوی معنی د ځمکی سخت او اوچت حصی ته وایی

اصطلاحی معنی : دکلام هغه حصه چی هلته سند ختم شوی وی

وجه تسمیه : د حدیث متن د سند په وجه قوی کیږی او هغه د خپله قایل طرفته اوچتوی دی وجی ورته متن وایی

**اسناد :** ددی دوه معانی دی

۱: حدیث د سند سره د هغی قایل طرفته منسوبول
۲ : د رواتو هغه سلسله چی متن پوری رسول کوی پدی معنی سره دا  د سند هم معنی دی

**مسند :** د نون په زبر سره : ددی دوه معنی دی :
۱:هغه کتاب چی هغی کی د یو یا ډیرو صحابه وو احادیث جدا جدا جمع کړی شوی وی لکه مسند احمد مسند ابن عمر مسند امام محمد بن ابراهیم
۲هغه حدیث چی سند یی متصل وی

**مسند :** د نون په زیر سره
هغه راوی چی حدیث په سند سره روایت کوی برابره ده که علم ورسره وی یا صرف راویت یی کوی
**محدث :** هغه شخص چی د روایت او درایت په اعتبار سره په علم حدیث باندی مشغول وی او د ډیرو روایاتو او رواتو باره کی علم لری

**حافظ:** ددی متعلق دوه اقوال دی
۱: د اکثر محدثینو په نزد دا د محدث هم معنی دی
۲ : د حافظ درجه د محدث نه اوچته ده هغه داسی چی حافظ په هر طبقه کی د رواتو باره کی دهغوی احوال پیژنی چی محدث ترینه لا علم وی

# د خبر اقسام

# متواتر او احاد

د سند په ذریعی سره مونږ ته رارسیدلی احادیث په دوه قسمه دی

متواتر او احاد

**متواتر :** لغوی معنی: متواتر د تواتر نه مشتق دی ددی معنی ده تتابع یعنی پرله پسی والی د یو بل نه پس او لګاتار

اصطلاحی تعریف : هغه خبر چی دومره ډیر مقدارکی راویانو روایت کړی وی چی د هغوی به دروغو باندی راجمع کیدل عادتا نا ممکن وی

**د متواتر اقسام**

متواتر په دوه قسمه دی

لفظی، معنوی

**متواتر لفظی :** هغه متواتر حدیث چی د هغی په الفاظو او معنی دواړو کی تواتر موجود وی

ددی مثال دا حدیث دی

"مَنْ كذب علي متعمدا فليتبوأ مقعده من النار".

((چا چی قصدا ما باندی روغ وویل نو په جهنم کی دی ځانله ځای جوړ کړی))

دا حدیث د ۷۳ نه زیاتو صحابه کرامو روایت کړی دی

**متواتر معنوی :** هغه متواتر حدیث دی چی د هغی په معنی کی تواتر موجود وی او الفاظوکی نه

ددی مثالونه ډیر زیات دی لکه په موزو باندی مسح او د قبر د عذاب احادیث

**د متواتر شروط**

د متواتر حدیث لاندی څلور شرطونه دی

۱: د رواتو یوکثیر تعداد به روایت کړی وی

۲: دا تعداد به په هره طبقه د سندکی موجود وی

۳: عادتا به ددوی په دروغو باندی اتفاق نا ممکن وی

۴ :ددوی د خبر اعتماد به په حس باندی وی یعنی هغه به وایی مونږ اوریدلی دی مونږ لیدلی دی وغیره وغیره

**د خبر متواتر حکم**

راجح موقف دادی چی متواتر حدیث د علم یقینی فایده ورکوی او دا هم ویل کیږی چی دا د علم نظری ظنی فایده ورکوی لیکن دا یو بی حقیقته قول د ی

ځکه عام سړی ته کوم کی چی د غور او فکر صلاحیت نه وی هغه ته هم د تواتر علم حاصلیږی

**علم ضروری:** هغه علم دی چی د هغی په تسلیمولو باندی انسان داسی مجبور وی چی هغه ردکولی نشی لکه په سترګو لیدلی حال

# اخبار احاد

احاد د احد جمع ده ددی معنی الواحد یعنی یو شی

د خبر واحد لغوی تعریف: هغه حدیث چی روایت کونکی یی یوکس وی

د خبر واحد اصطلاحی تعریف: هغه حدیث چی د متواتر شرطونه پکی موجود نه وی

**د خبر واحد حکم :** دا د علم ظنی فایده ورکوی او یو قول دا هم دی چی دا د علم ضروری فایده ورکوی بهر حال په هر صورت کی پدی باندی عمل کول واجب دی امام ابن حزم رحمه الله فرمایی هغه خبر واحد چی د هغی ټول راویان د رسول الله صلی الله علیه وسلم پوری عادل وی د علم قطعی او عمل فایده ورکوی

# د اخبار احاد اقسام

د خبر واحد دری قسمونه دی مشهور، عزیز غریب

**۱: مشهور**

ددی لغوی معنی هغه خبر چی د خلکو په مینځ کی مشهور وی اګرکه دروغ هم وی لکه حدیث د وطن سره محبت د ایمان حصه ده او دا حدیث ستاسو د روژی ورځ ستاسو د قربانی ورځ ده

اصطلاحی تعریف : هغه حدیث چی روایت کونکی یی دری یا دری نه زیات راویان وی  او د تواتر حد ته نه رسیږی

**وجه تسمیه :** دی ته مشهور ددی د شهرت او معروف کیدلو د وجی نه وایی بعض اصولیان دیته مستفیض وایی لیکن دا هم ویل کیږی چی مستفیض د مشهور په نسبت سره خاص دی ځکه دی کی په سندکی دواړه طرفته د تعداد برابریدل شرط دی

مثال : چا چی یو نیکی طرفته رابلل وکړل هغه ته به د نیکی کونکی پشان ثواب میلاویږی

او دا حدیث جلدی د شیطان له طرفه ده

دیته امام ترمذی حسن ویلی دی

**۲: عزیز :** عزیز هغه حدیث چی د هغی راویان دوه وی اګرکه یو طبقه کی وی

مثال: دا حدیث دی په تاسوکی یو تن تر هغه پوری مومن نشی کیدای تر څو چی زه ورته د خپل پلار او بچو نه ډیرګران نه یم

دا حدیث امام بخاری او مسلم دواړو د انس رض نه او بخاری د ابو هریره رض نه روایت کړی

وجه تسمیه دیته عزیز په دوه وجوهاتو سره ویل کیږی

۱ : ځکه دا په دویم سند سره د نقل کیدو په وجه قوی شوی دی

۲ ځکه چی د نورو احادیثو په نسبت عزیز احادیث په مقدارکی کم دی

اصل کی لفظ د عزیز  د باب عز یعز عزا وعزه وعزازه  نه ماخوذ دی د ع په زیر سره او ددی باب لغوی دوه معانی دی ۱ د یو شی قوی کیدل ۲ د یو شی دومره کمیدل چی نژدی ده ختم شی

نو په وجه تسمیه کی چا اولی معنی ته کتلی دی او چا دویمی ته
یاد ساتل پکار دی چی د جمهور په نزد د حدیث د صحت لپاره د عزیز شرط ندی البته
د ابوعلی جبایی ابن العربی او امام حاکم په نزد دا شرط دی چی صحیح حدیث به
عزیز وی
امام صنعانی په نظم النخبه کی د جمهورو د مذهب تایید پدی اشعارو سره کړی دی
((یعنی ته پوهه شه چی د صحیح حدیث لپاره د هغی عزیزکیدل شرط ندی او ویل
شوی دی چی دا شرط دی او دا دامام حاکم قول دی ))

**۳: غریب:** دیته فرد هم ویل کیږی هغه حدیث چی روایت کونکی یی یو راوی وی
مثال ددی دا حدیث دی بیشکه د ټولو اعمالو دارو مدار په نیتونو باندی دی
دا حدیث یحی بن سعید د محمد بن ابراهیم نه هغه د علقمه بن وقاص نه او هغه د
عمر بن خطاب نه روایت کړی دی یعنی په اولنی څلور طبقاتوکی تفرد دی بیا د یحی
بن سعید نه ډیرو راویانو روایت کړی دی

# د غریب حدیث اقسام

مطلق نسبی
**۱ غریب مطلق** دیته فرد مطلق هم وایی هغه حدیث دی چی دهغی په اصل سندکی
غرابت او تفرد واقع وی د اصل سند نه مراد د صحابی طرف دی لکه تابعی د صحابی
نه په روایت کولو متفرد وی او د هغه متابعت نه وی شوی
ددی مثال دا حدیث دی ((یعنی نبی علیه السلام د ولا د خرڅولو او هبه کولو نه منع
کړی))
دا حدیث عبدالله بن دینار د عبدالله بن عمر نه روایت کړی او دی کی هغه متفرد دی
دا حدیث امام مالک په موطا کی روایت کړی دی

بعضی وختونوکی تفرد د سند په ټولو راویانو یا اکثره کی جاری وی مسند بزار او معجم اوسط د طبرانی داسی کتابونه دی چی فرد مطلق روایات پکی په کثرت سره وجود لری

**۲ غریب نسبی** دی ته فرد نسبی هم وایی هغه حدیث چی هغی کی غرابت او تفرد د سند په مینځ کی واقع وی لکه یو روایت کی تبع تابعی یا د هغی نه لاندی طبقی والا راوی متفرد وی

وجه تسمیه کله چی دی حدیث کی تفرد د یو خاص معین کس طرفته منسوب دی دی وجی دیته نسبی ویلی کیږی

کله کله داسی حدیث مشهور هم وی

ددی مثال هغه حدیث دی چی امام مالک د زهری نه هغه د انس رضی الله عنه نه روایت کړی دی

نبی علیه السلام مکه ته ننوته او دهغه په سر باندی د زغری نه جوړه ټوپی وه

دا حدیث امام بخاری او مسلم روایت کړی دی

حافظ ابن حجر فرمایی د فرد اطلاق په نسبی باندی کم او مطلق باندی ډیر دی لکه څنګه چی د غریب اطلاق نسبی باندی ډیر او مطلق باندی کم وی

# د مقبول او مردود په اعتبار سره د اخبار احاد تقسیم

د مقبول او مردود لحاظ سره اخبار احاد چی مشهور عزیز او غریب دی په دوه قسمه دی مقبول مردود

**مقبول خبر او ددی حکم**

مقبول خبر هغه دی چی هغی نه استدلال کولی شی

ددی په حکم کی اختلاف دی د صحابه تابعینو او محدثینو مسلک دادی چی د متفرد راوی روایت کله چی هغه ثقه وی د شریعت د جحتونو څخه یو حجت دی چی عمل پری واجب دی

هغه خبر واحد چی قراینو سره یی تایید شوی وی او ددی اقسام

بیشکه هغه خبر واحد چی قراین لری د هغه حدیث نه غوره دی چی قراین نه لری او ددی بعضی اقسام په لاندی ډول دی

۱ هغه حدیث چی بخاری او مسلم روایت کړی وی او د تواتر حد ته نه رسیږی پداسی خبرکی لاندینی قراین موجود وی
۱ پدی فن کی د بخاری او مسلم اوچته مرتبه
۲صحیح احادیث د ضعیف نه جدا کولوکی ددوی په نورو محدثینو باندی فوقیت
۳ د علماو په بخاری او مسلم باندی اتفاق
۲ هغه حدیث چی د هغی په سندکی د راسخ العلم او ایمه کرامو تسلسل وی او غریب هم نه وی
لکه یو حدیث امام احمد د شافعی نه بغیر د تفرد نه روایت کړی
۳ هغه حدیث چی په مختلف اسانیدو سره روایت وی او ضعیف راویان او علت پکی نه وی
هغه علماو ته ددی انواعو علم وی چی پدی فن کی ماهر او د رواتو د احوالو او علتونو باره کی معلومات لری

# د صحیح او حسن په صورت کی د خبر مقبول اقسام

د مختلف مراتبو په اعتبار سره د مقبول خبر څلور اقسام دی
صحیح لذاته حسن لذاته صحیح لغیره حسن لغیره

**صحیح لذاته**
**تعریف :** هغه حدیث چی عادل او تام الظبط راوی یی د ځان پشان روای نه روایت کړی او سند یی متصل وی د هر قسم علت او شذوذ نه پاک وی

**د تعریف شرح او وضاحت**

**عدل :** هغه مسلمان عاقل بالغ کس چی د فسق نه محفوظ او په ادابوکی د خلل اچولو کارونو څخه پاک وی

دکبیره ګناهونو ارتکاب کول او په صغیره باندی همیشوالی کولو ته فسق وایی

د عدل په قید لګولو سره لاندینی راویان خارج شول

۱ الکاذب په نبی کریم صلی الله علیه وسلم باندی دروغ جوړونکی

۲ المتهم بالکذب د خلکو سره په عامو خبروکی دروغ ویونکی کس

الفاسق او المبتدع بدعتی مجهول هغه چی حالت یی معلوم نه وی

**الضبط** ددی لغوی معنی د قوت حافظی مظبوطوالی

ددی دوه اقسام دی ضبط صدر ضبط کتاب

**ضبط صدر** دیته وایی چی راوی چی څه اوریدلی هغه یی خپله سینه کی محفوظ کړی اوکله چی وغواړی پیش کولی یی شی

**ضبط کتاب** کله نه چی راوی حدیث اوریدلی هغه یی خپل کتاب کی محفوظ کړی او د غلطیانو تصحیح یی کړی وی تر دی چی هغه بل چاته ورکړی

د تام الضبط په قید لګولو سره لاندینی راویان خارج شول

الواهم وهم والا فاحش الغلط ډیری غلطی کونکی کثیر الغفله ډیر غفلت والا المخالف للثقات د ثقاتو مخالفت کونکی سیی الحفظ کمزوری ذهن والا خفیف الضبظ کمی حافظی والا

په تعریف کی د متصل قید لګولو سره هغه احادیث خارج شول چی سند یی متصل نه وی لکه معلق وغیره نیز د غیر معلول او شاذ قید لګولو سره شاذ او معلول حدیث خارج شو

**المعل** خبر معلول ددی لغوی معنی هغه حدیث چی علت پکی وی

اصطلاحی تعریف :هغه حدیث چی ظاهرکی د علتونو نه خالی وی لیکن د هغی په صحت کی جرح کونکی یو خفیه علت موجود وی

**الشاذ** شاذ حدیث ددی لغوی معنی منفرد ده
اصطلاحی تعریف : هغه حدیث چی هغی کی راوی پدغه روایت کی د خپله ځان نه د بهتره راوی مخالفت وکړی ددی یو بل تعریف د زیاده الثقه په سبق کی راروان دی

# د صحیح احادیثو مراتب

هغه اوصاف چی د حدیث د صحت تقاضا کوی د یو بل سره د نه مساوات او برابری په وجه د صحیح مخلتف مراتب دی هغه حدیث چی د راویانو عدالت قوت حافظه او د ترجیح نورو اسبابو باندی مشتمل وی هغه به ددی نه کم درجی والا حدیث باندی مقدم وی

بعضی علماو چی کومو سندونو ته اصح الاسانید ویلی هغه هم پدی وجه

لکه مالک عن نافع عن ابن عمر

ابراهیم عن علقمه عن ابن مسعود

ددی نه کم درجه والا سندونه

حماد بن سمله عن ثابت عن انس

او ددی نه کم درجی والا سندونه لکه سهیل بن ابی صالح عن ابیه عن ابی هریره

صحیح احادیث په اوه مراتبو باندی تقسیمول هم ددی برتری سره تعلق لری

۱ هغه حدیث چی په راویت کولو یی بخاری او مسلم اتفاق کړی وی

۲ هغه چی صرف بخاری روایت کړی وی

۳ هغه چی صرف امام مسلم روایت کړی وی

۴ هغه چی د بخاری او مسلم د شرط برابر وی لیکن هغوی نه وی روایت کړی

۵ هغه چی صرف د بخاری د شرط مطابق وی

۶ هغه چی صرف د امام مسلم د شرط مطابق وی

۷ هغه چی د بخاری او مسلم نه علاوه نورو محدثینو روایت کړی وی او د بخاری او مسلم د شرط مطابق نه وی لکه امام ابن خزیمه او ابن حبان

**د امام بخاری او مسلم شرایط**

داسی هیڅ قسم شرط نشته چی بخاری او مسلم په صحیحنوکی د حدیث راوړلو لپاره شرط ایخودی وی البته محققینو علماو د هغوی دکتابونو د تحقیق په نتیجه کی دیته ورسیدل چی بخاری او مسلم په خپلوکتابونوکی فلانی فلانی شرط پابندی کړی ده دی وجی نه په همدی علماوکی د شروطو په تعیین کی اختلاف پیدا شو

مونږ به دلته د امام نووی قول ذکرکړو چی هغه حافظ ابن حجر هم په النخبه کی اختیار کړی دی

د بخاری او مسلم دواړو یا د یو د شرط نه مراد دادی چی حدیث به د هغوی د سند د رواتو سره منقول وی او د روایانو نه د حدیث اغستلو په وخت به د هغه حالاتو خیال ساتلی شی چی هغوی یی التزام کړی وو

**حسن لذاته**

تعریف : هغه حدیث چی هغه عادل او خفیف الضبط راوی روایت کړی پدی حال کی چی سند یی متصل او معلول یا شاذ نه وی

په حسن لذاته کی د صحیح لذاته ټول شرطونه موجود وی البته ددی بعضی راویان حافظه کی د صحیح د راویانو په نسبت کم وی او دا د صحیح پشان حجت دی

د صحیح پشان د حسن هم مختلف مراتب دی حافظ ذهبی فرمایی په حسن کی د ټولو نه اعلی مرتبه بهز بن حکیم عن ابیه عن جده او عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده ده

**صحیح لغیره**

هغه حسن لذاته چی سندونه یی بیشماره وی

حدیث خو ددی اسانیدو په ډیروالی سره د حسن ددرجی څخه د صحیح درجی ته رسیږی لیکن صحیح لغیره وی نه لذاته

ددی مثال : محمد بن عمرو بن علقمه د ابو سلمه نه روایت کوی هغه د ابو هریره نه چی نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی

که ما خپل امت په مشقت کی نه اچولی ما به ورته د هر مونځ په وخت کی د مسواک استعمالولو حکم کړی وی
امام ترمذی ددی حدیث روایت کولو نه پس فرمایی دا دحدیث صحیح دی ځکه ددی بیشمار سندونه شته
یاد ساتل پکار دی چی دا مثال ددی حدیث د متن لپاره ندی بلکی د ددی سند په لحاظ سره دی ورنه دا حدیث خو اصل کی بخاری او مسلم روایت کړی دی
ابن الصلاح فرمایی  د صدق او عدالت په اعتبار سره خو محمد بن عمرو بن علقمه مشهور راوی دی لیکن راسخ العلم ندی همدا وجه ده چی د ذهن دکمزوری په وجه اکثرو علماو دیته ضعیف ویلی دی لیکن بعضو د صدق او عدالت په وجه ورته ثقه ویلی دی دی وجی نه ددی حدیث به حسن وی

**حسن لغیره**

هغه متوقف حدیث دی چی هغی ته دهغی پشان یا د هغی نه قوی متابعت میلاو شی لکه د مجهول الحال روایت
اصل کی متوقف حدیث ضعیف وی د متابعت د تایید په وجه هغه حسن وګرځی
ددی مثال : ابو سعید خدری رضی الله عنه مرفوعا روایت کوی
نه ځان ته ضرر ورکول شته او نه بل ته
دا امام دارقطنی او حاکم روایت کړی دی
ددی حدیث ډیر طرق شته لیکن یو هم د نقد او جرح نه خالی ندی البته بعضی طرق نورو ته تقویت ورکوی دی وجی نه امام نووی او ابن الصلاح دیته حسن ویلی دی

# د امام ترمذی وغیره دا اصطلاح (حسن صحیح)

پدی مذکوره عبارت (حسن صحیح) کی اشکال دی ځکه د حسن درجه د صحیح نه کمه وی لهذا یو حدیث ته حسن صحیح ویل دکمی د اثبات او نفی جمع کول دی او دا څنګه کیدای شی

حافظ ابن حجر ددی جواب کی فرمایی : کوم حدیث باندی چی ددی دواړو اوصافو اطلاق وشی هغه به ددوه حالته نه خالی نه وی یا به هغه غریب وی روایت کونکی به یی یوکس وی یا به غریب نه وی

په اولنی صورت کی ددواړو اوصافو جمع کولو مقصد دادی چی امام ترمذی ته شک شوی چی ایا دغه متفرد راوی د قوی ذهن والا وو چی روایت ته یی صحیح وویلی شی یا دکمزوری ذهن والا وو چی روایت ته یی حسن وویل شی

او اصل کی عبارت داسی وو حسن او صحیح یعنی حسن دی یا صحیح دی

لیکن د اختصار د وجی نه حسن صحیح وګرځیده

دداسی حدیث مرتبه د هغه حدیث نه کمه ده چی هغی باره کی یقینی معلوم وی چی صحیح دی

دویم حالت یعنی چی حدیث غریب نه وی دی صورت کی ددوه اوصافو جمع کولو مقصد د حدیث دوه سندونه دی یعنی دا حدیث د یو سند په اعتبار سره صحیح دی او د دویم سند اعتبار سره حسن دی اصل عبارت دی حسن وصحیح

ددی حدیث مرتبه د هغه نه اعلی ده چی صرف صحیح وی

ددی مثال دا حدیث دی که ما زما د امت په تکلیف کی اچولو خطره نه وی ما به هغوی ته د هر مونځ په وخت د مسواک استعمالولو حکم کړی وی

دا حدیث بخاری او مسلم په صحیح سند سره او امام ترمذی د محمد بن عمر په سند سره روایت کړی دی د محمد بن عمر د حدیث په صحت او حسن کی اختلاف دی دی وجی نه امام ترمذی پدی حدیث باندی د حسن صحیح اطلاق کړی دی

حافظ ابن دقیق فرمایی: په حسن او صحیح کی دسره تضاد نشته البته که حدیث ډیر حسن والا وی نو بیا تضاد شته اوکله چی حدیث د صحت درجی ته ورسیږی نو لازمی په هغی کی د حسن وصف راځی چی د صحت تابع دی ځکه اعلی درجه د ادنی درجی د وجود نفی نه کوی او ددی اشکال ختمولو لپاره داسی ویل صحیح دی چی د ادنی درجی په اعتبار سره حسن دی او د اعلی درجی په اعتبار سره صحیح دی

## د امام ترمذی د یو حدیث باره کی دا ویل حسن غریب

بعضی علماو د امام ترمذی دا عبارت ناشنا ګڼړلی ځکه د امام ترمذی د خاص اصطلاح مطابق حسن هغه حدیث دی چی په مختلف سندونو سره روایت وی او غریب هغه چی راوی یی یو وی

حافظ ابن حجر چی دی باره کی کوم جواب کړی د هغی خلاصه داده : د امام ترمذی خاص اصطلاح به په هغه حدیث محمول وی چی هغی ته امام ترمذی صرف حسن ویلی وی

اوکوم حدیث باندی چی ترمذی د حسن غریب حکم ولګوی هغی نه مراد به د جمهورو اصطلاح کی حسن وی او دهغوی د اصطلاح مطابق د حسن او غریب جمع کولوکی څه تضاد نشته

ابن تیمیه رحمه الله فرمایی : په امام ترمذی باندی اعتراض کونکی خلکو ته د هغه د اکثرو اقوالو مطلب نه وی معلوم ځکه کله چی محدثین په یو حدیث باندی حکم لګوی چی دا غریب دی د هغوی مراد دا وی چی دا پدی سند سره غریب دی کله هغوی ددی وضاحت هم کوی اګر چه حدیث د هغوی په نزد صحیح او معروف وی کله چی دغه حدیث په یو بل سند سره روایت شی نو دا دغی سند په اعتبار سره غریب شی اګر چه ددی متن صحیح او معروف وی دی وجی نه امام ترمذی چی کله کوم حدیث

باندی د حسن غریب حکم لګوی نو د هغه مراد دا وی چی دا پدی سند سره غریب دی
لیکن ددی متن د شواهد په بنیاد باندی د حسن په زمری کی راځی

# د ثقه راوی زیادت او د حدیث تقسیم شاذ او محفوظ ته

په علوم حدیث کی د زیادت ثقه باب ذکرکول بهترین کار دی زیادت د متن په شان په سندکی هم واقع کیږی لکه موقوف مرفوع او منقطع متصل ګرځول
شیخ ابن الصلاح د زیادت ثقه لاندینی دری اقسام ذکرکړی دی ددی دا تقسیم امام نووی او حافظ ابن حجر هم غوره کړی دی
۱ : د ثقه راوی هغه زیادت چی د نورو ثقاتو د دده نه د ډیر ثقه د روایت مخالف وی دا قسم زیادت مردود دی
پداسی صورتحال کی د ثقاتو یا اوثق راویانو روایت ته محفوظ او د ثقه روایت ته شاذ ویلی کیږی
خبر محفوظ هغه حدیث چی ثقه راویان یا اوثق یی د یو ثقه راوی په خلاف کی روایت کړی
خبر شاذ هغه حدیث چی ثقه راوی روایت کړی وی او د نورو ثقاتو یا اوثق راویانو د روایت خلاف وی
په سندکی د شذوذ واقع کیدو مثال : د ابو سعید خدری رضی الله عنه نه مرفوعا روایت دی
د قبرستان او تشناب نه علاوه ټوله ځمکه مسجد دی
امام ترمذی دا روایت کړی دی
دا حدیث حماد بن سلمه د عمرو بن یحی نه هغه د خپل پلار نه او هغه د ابو سعید خدری نه مرفوعا او موصولا روایت کړی دی

لیکن سفیان ثوری د عمرو بن یحی هغه د خپل پلار نه هغه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه مرسلا روایت کړی د ی
او سفیان ثوری د حماد بن سلمه په نسبت اوثق دی
دی وجی نه امام دارقطنی په العلل کی لیکی دا روایت مرسلا محفوظ دی
۲د ثقه هغه زیادت چی د نورو ثقاتو یا اوثق راویانو د روایت منافی نه وی
دا قسم زیادت مقبول دی ځکه دا یو مستقل حدیث دی چی یو ثقه راوی د خپل شیخ نه انفرادی طور سره روایت کړی دی
ددی مثال د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دی رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایی کله چی سپی په یو لوخی کی خوله ووهی نو اوه ځل یی ووینځی
امام مسلم او نسایی دا متن د علی بن مسهر او هغه د اعمش نه هغه د ابو صالح او او رزین نه او هغی دواړو د ابو هریره نه روایت کړی نو ددی متن په اخرکی راځی ددی لوخی کی موجوده اوبه وغیره واړوی دی راویانو ددی الفاظو زیادت کړی او د اعمش نورو شاګردانو دا الفاظ ندی ذکرکړی نو ددی الفاظو په روایت کولوکی علی بن مسهر متفرد دی او هغه یو ثقه راوی دی نو دا زیادت به مقبول وی ځکه دا ددی نورو راویانو د روایت خلاف ندی
۳ د ثقه هغه زیادت چی یو خاص قسم کی د ثقاتو یا اوثق راویانو د روایت منافی وی دا مخالفت د مطلق روایت په مقیدکولو او د عام د تخصیص په صورت کی وی
د راجح قول مطابق دا قسم زیادت مقبول دی
ددی مثال دا حدیث دی کله چی سپی په لوخی کی خوله ووهی نو د هغی پاکولو دپاره دی اوه ځله ووینځل شی
امام مسلم چی دا حدیث د محمد بن سیرین د لاری د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت کړی دی نو هغه په متن کی ددی لفظ زیادت کړی په اول ځل کی به یی په خاورو وینځی البته د ثقاتو روایات په خاورو سره د پاکولو د زیادت نه خالی دی نو دی زیادت د ثقاتو مطلق روایت چی صرف وه ځل وینځل وو مقیدکړ

# معروف او منکر حدیث

**معروف حدیث** هغه حدیث دی چی یو ثقه راوی د ضعیف راوی د روایت مخالف روایت کړی وی

**منکر حدیث** هغه دی چی ضعیف راوی یی د ثقه راوی په مخالفت کی روایت کړی ددی مثال هغه حدیث دی چی ابن ابی حاتم د حبیب بن حبیب زیات نه چی ضعیف راوی دی روایت کړی حبیب د ابو اسحاق نه هغه د عزار بن حریث نه هغه د عبد الله بن عباس نه مرفوعا روایت کوی چی چا مونځونه قایم کړل زکات یی ادکه د بیت الله حج یی وکړ او د رمضا ن روژی یی ونیولی میلمه ته یی میلمستیا ورکړه نو جنت ته به داخل شی
ابو حاتم فرمایی دا روایت مرفوعا منکر دی ځکه ثقاتو دا د عن ابی اسحاق عن العیزار عن ابن عباس نه موقوفا روایت کړی او دا موقوفا معروف دی

# متابعت او دهغی اقسام

د متابعت لغوی معنی موافقت کول دی
اصطلاحی معنی یو راوی ته د هغه په روایت کی مشارکت حاصلیدل
د متابعت دوه قسمه دی متابعت تامه متابعت قاصره
**متابعت تامه** په خپله راوی ته د هغه په روایت کی مشارکت د بل چا یو ځای والی حاصلیدل
۲ **متابعت قاصره** د راوی استاذ یا د هغه نه بره بل کوم راوی ته په روایت کی مشارکت حاصلیدل

# متابع شاهد اعتبار

متابع د ب په زير سره ديته تابع هم ويل کيږی هغه حديث چی لفظا او معنی يا صرف معنی د يو متفرد راوی د حديث موافقت کوی او دواړه احاديث د يو صحابی نه نقل وی

**شاهد** هغه حديث چی لفظا يا معنا يا صرف معنی د يو متفرد راوی د حديث موافقت کوی ليکن دواړه احاديث د جدا جدا صحابه کرامو نه نقل وی
بعضی اصوليانو متابع د هغه حديث سره خاص کړی چی هغه په لفظ کی د يو متفرد راوی د روايت موافق وی او شاهد يی د هغه حديث سره خاص کړی چی په معنی کی د يو روايت موافق وی په دواړه صورتونوکی صحابی يو وی يا جدا جدا
اعتبار د يو حديث د سندونو پلټنه چی معلوم شی ايا ددی حديث کوم متابع يا شاهد شته که نه ؟
حافظ ابن حجر د شاهد او متابع دا مثال بيان کړی
امام شافعی په کتاب الام کی د امام مالک نه روايت کړی هغه د عبدالله بن دينار نه هغه د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه چی رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايی مياشت د نهيش ورځو وی هغه وخت پوری روژه مه نيسی تر څو مو چی مياشت نه وی ليدلی دغه شان روژه د مياشت په ليدو سره ماتوی که په ۲۹ تاريخ باندی اسمان وريځ وی نو ديرش روژی پوره کوی
د بعضی علماوګمان دی چی د مذکوره حديث پدی الفاظو فاکملوا العده ثلاثين يوما کی امام شافعی تفرد کړی دی ځکه د امام مالک نورو شاګردانو ددی الفاظو په ځای د فاقدروا له الفاظ روايت کړی دی
ليکن صورتحال دادی چی د امام شافعی متابعت تامه او قاصره دواړه موجود دی
امام بخاری بعينه همدا الفاظ په خپل کتاب کی د عبدالله بن مسلمه نه هغه د امام مالک نه په مذکوره سند سره روايت کړی دی نو دا دامام شافعی لپاره متابعت تامه شوه

امام ابن خزیمه په خپل کتاب کی همدا الفاظ د عبیدالله بن عمر نه هغه د نافع نه هغه د عبدالله بن عمر نه روایت کړی نو دا روایت د امام شافعی لپاره متابعت قاصره شو
امام مسلم پخپله هم دا الفاظ د عبیدالله بن عمر پدی سند سره روایت کړی دی
نیز ددی حدیث یو شاهد هم شته چی امام نسایی پدی الفاظو سره د محمد بن حنین نه هغه د عبدالله بن عباس نه روایت کړی

# محکم او مختلف حدیث

**محکم حدیث** هغه مقبول حدیث دی چی د خپل مساوی حدیث د مخالفت نه سالم وی
پداسی حدیث باندی عمل کول واجب دی اکثر احادیث ددی قسم نه دی
**مختلف الحدیث** هغه حدیث چی د خپل ځان پشان حدیث سره تعارض لری لیکن ددواړو مابین کی جمع ممکن وی
اما شافعی طحاوی او ابن قتیبه پدی موضوع باندی کتابونه لیکلی دی
کله چی په دوه مقبولو احادیثوکی تعارض واقع شی نو دا به څنګه حل کولی شی
پدی صورت کی به په ترتیب سره لاندینی څلورو امورو ته رجوع کولی شی
۱: کله چی دا دواړه احادیث د یو بل مخالف وی او د هیڅ تکلف نه بغیر ددواړو مینځ کی جمع ممکن وی نو دا لاره به اختیارولی شی
ددی مثال دا حدیث دی
د جذام بیماری والا نه داسی تخته چی د زمری نه تختی
دویم حدیث بیمار سړی به د صحتمند سره نه کینی
حدیث نه څه بیماری متعدی ده او نه د بدفالی څه حقیقت شته

ددی احادیثو د معنی څخه پیدا شوی تعارض داسی دی : په اولنی حدیث کی د جذام بیماری والا کس څخه د جدا کیدو حکم دی لیکن په اخری حدیث کی ددی نفی ده چی بیماری د یو نه بل ته نه نقل کیږی

ددی تطبیق او جمع : بیماریانی پذات خود نه منتقلیږی لکه د بعضی جاهلانو او ډاکټرانو چی ګمان دی البته داکیدای شی چی الله تعالی د یو بیمارکس سره کیناستل د روغ سړی د بیماری سبب وګرځوی
لیکن دا هم کتل شوی دی چی دنورو اسبابو پشان د بیماری والا سبب د مسبب باوجود نه واقع کیږی
۲: که چیرته دداسی دوه احادیثو په مابین کی جمع ممکن نه وی نو ددواړو تاریخ ته به رجوع کولی شی اوکوم چی متاخر وی هغه به ناسخ او متقدم به منسوخ وی
۳ :که د تاریخ معلومات نه وی او په متن یا سندکی د ترجیح څه وجوهات موجود وی هغه به اختیارولی شی
۴: که د ترجیح څه وجه هم ممکن نه وی نو ددی دواړو احادیثو باره کی به توقف کولی شی تر دی چی محقق ته وجه د ترجیح ښکاره شی

# نسخ او دهغی د پیژندلو طریقی

د نسخ لغوی معنی ازاله یعنی زایلول او نقلول دی ته وایی نسخت الشمس الظل یعنی نمر سوری لره زایله کړ پدی مثال کی د نسخت معنی ازاله ده دغه شان ته وایی نسخت الکتاب یعنی ما دکتاب عبارت نقل کړ
اصطلاحی تعریف :د یو متاخر شرعی دلیل په بنا باندی متقدم شرعی حکم اوچتولو ته نسخ وایی
د نسخ د پیژندلو لاندینی دری طریقی دی
۱ نص د رسول الله علیه السلام صراحت دا طریقه د ټولو نه واضحه ده لکه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی ما تاسو مخکی د قبرونو د زیارت نه منع کولی اوس یی زیارت کوی

۲ د صحابی خبر ورکول چی دا دلیل متاخر دی لکه جابر رضی الله عنه فرمایی یعنی په اور باندی پخ شوی شیانو په وجه اودس نه کول د نبی علیه السلام اخری عمل وو
۳ تاریخ یعنی د تاریخ په وجه د یو دلیل د متقدم والی او د بل د متاخر والی فیصله کول لکه د شداد بن اوس رضی الله عنه نه روایت دی چی نبی کریم صلی الله علیه وسلم په روژه کی حجامه لګونکی او حجامه کونکی کس ته فرمایلی وو چی ددواړو روژه ماته شوه
لیکن د ابن عباس رضی الله عنهما په حدیث کی دی چی نبی علیه السلام د احرام او روژی په حالت کی حجامه لګولی ده
په دواړه احادیثوکی ظاهری تعارض دی او حل یی دادی چی د شداد بن اوس د حدیث تعلق د فتح مکه سره دی چی ۸ هجری کی واقع شوی وه او د ابن عباس رضی الله عنهما حدیث د حجه الوداع لسم هجری سره متعلق دی لهذا د ابن عباس رض حدیث ناسخ شو او وس به د حجامی په و جه روژه نه ماتیږی لیکن دا یاد ساتل پکار دی چی ددی دواړو احادیثو د ناسخ او منسوخ په باب کی ذکرکول د یو قول مطابق دی

نوټ د متاخر الاسلام صحابی روایت
چی د متقدم الاسلام صحابی د روایت په خلاف راشی دا به په نسخ دلیل نه وی ځکه کیدای شی چی متاخر الاسلام صحابی دغه روایت دداسی صحابی نه اوریدلی وی چی د متقدم الاسلام صحابی نه هم مخکی مسلمان شوی وی یا د هغی په شان بل صحابی نه اوریدلی وی او ارسال یی کړی وی
نیز اجماع خپله ناسخ نشی کیدای د نسخ دلیل کیدای شی

# مردود خبر او ددی د رد والی اسباب

خبر مردود هغه حدیث چی د هغی د راوی صدق راجح نه و ی
ددی ډیر اقسام دی بعضی اصولیانو ددی ۴۱ یا ۴۲ اقسام ذکرکړی دی

لیکن ددی بنیادی دوه اسباب دی

۱ د یو یا ډیرو راویانو د سند نه غورځیدل

۲ د سند په بعضی راویانو باندی جرح کیدل

د سند نه د راوی غورځیدلو اقسام

د راوی د ساقطیدو دوه قسمه د ی

واضح او جلی هغه دی چی دهغی په پیژندلوکی ماهرین حدیث او عام طلبه مشترک وی

خفی هغه دی چی د علم حدیث ماهرین او د اسانیدو او علتونو نه خبردار علما یی پیژنی

د اولنی قسم د پیژندلو طریقه

د راوی او مروی عنه د ملاقات عدم ثبوت هغه داسی چی راوی د مروی عنه په زمانه کی دسره موجود نه و ی یا یو زمانه کی موجود وی خو دواړو ملاقات نه وی شوی نیز راوی ته به د مروی عنه د طرفه اجازت وی نه وجادت

ددی کارونو د ثابتولو لپاره د علم تاریخ ضرورت راغلی ځکه دا علم د رواتو په تاریخ پیدایش او وفات باندی مشتمل وی دغه شان پدی کی د هغوی د طالب علمی ددور تذکره وی

د سقط په اعتبار سره د مردود خبر اقسام

د سقط په اعتبار سره د مردود خبر شپږ اقسام دی

۱معلق ۲ مرسل ۳ معضل ۴ منقطع ۵ مدلس ۶ مرسل خفی

**معلق** هغه حدیث چی د هغی د ابتدا سند څخه یو یا زیات راویان حذف شوی وی د محذوف راویانو د حالت د نه معلومیدو په وجه دا حدیث په مردود احادیثوکی شمار شوی

په صحیح بخاری کی د معلق احادیثو حکم

په صحیح بخاری کی معلق احادیث په کثرت سره موجود دی امام نووی ددی حل پیش کړی هغه فرمایی

کوم روایات چی په صیغه د جزم سره وی لکه قال ذکر روی نو د امام بخاری نه تر قایل پوری به ددی په سند د صحت حکم لګولی شی
لیکن کوم روایات چی په صیغه د تمریض سره وی لکه قیل ذکر روی نو د هغه نه د منسوب الیه پوری د سند څه ګرانتی نشته
که یو محقق ددی قسم روایت څخه استدلال کول غواړی نو هغه باید د رواتو د حالات تحقیق وکړی
۲ **مرسل** هغه حدیث چی یو تابعی یی د نبی کریم صلی الله علیه وسلم څخه مرفوعا بیان کړی
لکه هغه ووایی رسول الله صلی الله علیه وسلم داسی فرمایلی دی یا یی کړی دی
وجه د تسمیه داده چی عرب وایی ناقه رسل یعنی تیز رفتار اوښه ګویا که مرسل راوی د حدیث متن طرفته جلدی کوی او بعضی سند حذف کوی
حکم مرسل حدیث په مردود احادیثوکی شمار شوی او وجه همغه ده چی مونږ د معلق په حکم کی ذکرکړی وه چی د محذوف راوی حالات مجهول دی هغه داسی چی دی روایت کی احتمال دی چی ایا صحابی ساقط کړی شوی یا تابعی که تابعی وی نو دا احتمال دی چی ثقه به وی که ضعیف

## د مرسل حکم

جمهور محدثینو او اکثرو فقهاو دا مسلک اختیارکړی چی مرسل مردود دی او دلیل یی دادی چی د مجهول راوی دکوم چی نوم معلوم وی د هغه روایت لره اعتبار نشته نو د هغه مجهول روایت به څنګه قبلولی شی چی نوم یی هم نه وی معلوم
ځکه کوم راوی چی محذوف دی هغه هم مجهول العین دی هم مجهول الحال
لیکن ددری ایمه کرامو چی ابو حنیفه مالک او د یو روایت مطابق د امام احمد نه دا قول نقل دی چی مرسل مطلق طور باندی مقبول دی
ددوی دلیل د یو راوی باره کی سکوت اختیارول ددی دلیل دی چی دا راوی عادل دی ځکه خاموشی اختیارولو والا راوی عادل هم دی او دا هم ورته معلومه ده چی زما پدی روایت سره د شریعت احکام مرتب کیږی

دی وجی نه بعضی علماو خو لا تردی پوری ویلی دی چی مرسل روایت د مسند روایت څخه ډیر قوی دی
ځکه په سند سره بیانونکی راوی تاته د سند د راویانو باره کی ذمه داری درکوی چی د راویانو احوال معلوم کړه اوکوم راوی چی مرسلا روایت کوی هغه تا ددی ذمه داری څخه بری کوی او دا فیصله کوی چی دا روایت قطعی طور سره صحیح دی
د امام شافعی وغیره دا خیال دی چی د سعید بن مسیب پشان دکبارو تابعینو مرسل روایت مقبول دی کله چی یوه قرینه دهغی تایید وکړی
مثلا دا حدیث په یو بل سند سره متصل روایت شوی وی یا د صحابی د فتوی یا د اکثر علماو د فتوی مطابق وی
د مرسل د موضوع سره متعلق دا مذکوره بحث د صحابه کرامو د مرسل باره کی ندی صحیح مذهب کوم چی جمهورو علماو اختیارکړی دادی چی د صحابی مرسل حجت دی
ځکه صحابه ډیرکم د تابعینو څخه روایت کوی
اوکله چی هغوی داسی روایت هم کوی نو وضاحت کوی
نو کله چی هغوی بغیر د واسطی څخه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم څخه روایت کوی نو دا حذف شوی واسطه صحابی وی او صحابه ټول عادلان دی

۳ **معضل** هغه حدیث چی د هغی د سند څخه دوه یا ډیر راویان په مسلسل ډول حذف وی
وجه د تسمیه دا د اعضله نه ماخوذ دی ددی معنی ده چی ستړی یی کړ یعنی راوی ستړی شو او ډیری واسطی یی وغورځولی

۴ **منقطع** هغه حدیث چی د سند څخه یی یو یا ډیر راویان په غیر مسلسل طور سره ساقط وی

## مدلس

تدلیس

د تدلیس لغوی معنی اخفا العیب د عیب پټول دی
تدلیس د دلس نه ماخوذ دی ددی معنی تورتم دی ګویا که مدلس درست صورتحال پټ کړی او سامع یی په توره معامله کی اچولی دی
اصطلاحی تعریف د تدلیس دوه قسمونه دی
تدلیس الاسناد تدلیس الشیوخ
۱ تدلیس الاسناد د راوی خپل استاذ لره غورځول او د هغه د استاذ څخه یا د هغه راوی څخه راویت کول چی دده ملاقات ورسره شوی وی خو سماع یی ترینه ثابت نه وی نیز هغه ته د شیخ د طرفه اجازت وی نه وجادت او روایت پداسی صیغه سره وکړی چی د سماع احتمال پکی وی
لکه عن او قال
تدلیس التسویه د تدلیس الاسناد بهترین قسم دی ددی تعریف دادی راوی داسی حدیث راویت کړی چی دهغی په سندکی دوه ثقه راویان چی مینځ کی یی ملاقات ثابت وی او دداوړو مابین کی یو ضعیف راوی وی او مدلس راوی دا ضعیف راوی حذف کړی او دغه دواړه ثقه راویان د یو بل سره میلاو کړی
شیخ عراقی فرمایی د رواتو څخه بقیه بن الولید او ولید بن مسلم پداسی تدلیس کولو باندی مشهور دی
۲ تدلیس الشیوخ د راوی خپل استاذ لره پداسی لقب اوکنیت سره ذکرکول چی هغی باندی خلکوکی مشهور نه وی
حکم کوم مدلسین چی د غیر ثقه راویان څخه تدلیس کوی د هغوی روایت به تر هغه پوری مقبول نه وی تر څو چی یی تصریح په سماع باندی نه وی کړی

## ۶ مرسل خفی

د راوی دداسی هم عصر څخه روایت کول چی ملاقات یی ورسره نه وی شوی او دهغه له طرفه ورته اجازت وی نه وجادت او روایت هم پداسی الفاظو نقل کوی چی هغی کی د سماع احتمال وی

مثال ابن ماجه د عمر بن عبدالعزیز په سند سره روایت کړی هغوی د عقبه بن عامر څخه چی نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایی الله تعالی دی په پیره کونکی باندی رحم وکړی
حافظ مزی په الاشراف کی فرمایی د عمر بن عبدالعزیز ملاقات د عقبه بن عامر سره ندی ثابت

## د تدلیس او ارسال خفی د پیژندلو طریقی

۱ د مدلس یا مرسل پخپله باندی اعتراف کول
۲ ددی دواړی د مروی عنه څخه مطلقا یا په کوم خاص حدیث کی د سماع عدم ثبوت او په یو خاص حدیث کی دسماع د عدم ثبوت باره کی خبرداری ورکول د دی فن د ماهرینو کار دی

## په راوی باندی د جرح او طعن اسباب

په راوی باندی د جرح لس اسباب دی بعضی د بعضو نه سخت دی
د لاندینی پینځه اسبابو تعلق د راوی د عدالت  سره دی
۱ الکذب نبی کریم صلی الله علیه وسلم باندی دروغ تړل ۲ التهمه بالکذب د عامو خلکو سره په خبرو اترو کی دروغ ویل ۳ الفسق ګناه ۴ البدعه بدعت ۵ جهالت
او د لاندینی پینځه اسبابو تعلق د راوی د ضبط یعنی قوت حافظه سره دی

۱ فحش الغلط فاحشی غلطیانی کول  په کثره الغفله د غفلت زیاتوالی ۳ الوهم وهم کول ۴ مخالفه الثقات د ثقه راویانو مخالفت کول ۵ سو الحفظ د قوت حافظی کمزوری
وس ددی اسبابو تذکره د ردکولو په ترتیب سره په لاندی ډول کیږی

اولنی سبب د راوی په نبی کریم صلی الله علیه وسلم باندی دروغ تړل دداسی دروغجن روای حدیث ته موضوع ویل کیږی

# موضوع حدیث او ددی حکم

الوضع ددی لغوی معنی ده دروغ تړل
موضوع حدیث هغه دروغ حدیث دی چی نبی کریم صلی الله علیه وسلم باندی دروغ تړل شوی وی
په مطلق طور سره موضوع احادیث روایت کول حرام دی البته که د هغی د عیب او موضوع والی بیان وشی نو بیا یی روایت کول درست دی
ځکه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایی څوک چی ما طرفته یو حدیث منسوب کړی او د هغه دا خیال وی چی دا دروغ دی نو دا ددروغ ویونکو څخه یو دی

**د حدیث د وضع کولو اسباب**

د احادیث د وضع کولو او ددروغو احادیثو د روایت کولو ډیر اسباب دی چی د هغی څخه بعضی په لاندی ډول دی
۱ د الله تعالی قربت حاصلول ۲ د حکمرانانو د قربت خواهش ۳ په اهل اسلام باندی د هغوی دین ګډوډول ۴ دکسب او رزق تلاش کول
۵ خپل مذهب ته تقویت ورکول ۶ دشهرت دپاره نادر او ناشنا احادیث بیانول

**د الله تعالی د قرب حاصلولو په نیت**

د الله تعالی د قربت حاصلولو لپاره داسی احادیث د ځانه جوړول چی خلکو ته پکی د نیکی طرفته ترغیب او د بدی څخه ویره ورکول وی لکه دا قسم احادیث عبادت ګزارو او صوفیانو خلکو جوړ کړی دی
او دا بدترین قسم او غټ مصیبت او امتحان دی ځکه عموما ددوی د تقوی او دین داری د وجی په دوی باندی خلک اعتمادکوی او ددوی طرفته مایله کیږی
کوم راویانو چی د اجر او دالله د قرب حاصلولو په غرض دروغ احادیث جوړ کړی د هغوی څخه نوح بن ابی مریم راوی د ی

دا د مرو قاضی وو او ددی لقب نوح الجامع دی ده د امام ابو حنیفه او ابن ابی لیلی څخه فقه حاصل کړی وه کله چی ده ته وویل شو چی ته چی د ابن عباس رض څخه د عکرمه په واسطه د یو یو سورت فضایلو باره کی احادیث روایت کوی دا دکوم ځای نه د عکرمه باقی شاګردان خو داسی احادیث نه روایت کوی ؟ هغه په جواب کی وویل کله چی ماته پته ولګیده چی خلکو قران ته شاه کړی او د ابو حنیفه فقه او د ابن اسحاق مغازی پسی شوی دی نو ما د ثواب په نیت دا احادیث جوړ کړل چی خلک دی طرفته متوجه شی

## ۲ د حکمرانانو د قربت حاصلولو خواهش

د حکمرانانو د خواهشاتو مطابق احادیث جوړول او د هغوی قربت حاصلول د امیر المومنین مهدی عباسی سره د غیاث بن ابراهیم کوفی یوه قصه پیش راغلی وه هغه داسی چی مهدی دکوترو سره محبت لره او د هغی سره به یی لوبی کولی یوه ورځ غیاث د مهدی خواته راغلی دی کی د هغه مخی ته کوتره وه او هغه ورسره مشغولیده غیاث وویل ماته فلانی د فلانی نه حدیث بیان کړی او سند یی مکمل کړ او د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا حدیث یی نقل کړ

یعنی مقابله کول صرف په نیزه بازی یا د اوښانو په منډو یا په مرغوکی جایز ده غیاث پدی حدیث کی د او جناح لفظ اضافه کړ مهدی ته ددی پته ولګیده او هغه د خپلوکوترو د ذبح کولو حکم وکړ

دا حدیث اصحاب السنن روایت کړی دی لیکن دا مذکوره من ګړت زیاتی پکی نشته

## ۳ په مسلمانانو باندی د هغوی دین ګډوډول

لکه هغوی ته ددهوکه ورکولو په نیت باندی په اسلام  کی پدی نیت داخل شوی ملحدینو دا کارکړی

ددوی څخه یو بیان بن سمعان وو هغه د علی رضی الله عنه د الوهیت دعوی کړی وه خالد بن عبدالله قسری هغه قتل کړ او وی سوزه

**۴ کسب کول او رزق پیدا کول**

د پیسو پیدا کولو لپاره احادیث جوړول لکه د قصه ګرو خلکو دا طریقه ده

**۵ خپل مذهب ته تقویت ورکول**

**۶ د شهرت لپاره ناشنا احادیث پیش کول**

# د وضع د پیژندلو طریقی

د وضع ( د حدیث د ځانه د جوړولو ) د پیژندلو طریقی په لاندی ډول دی

۱ د واضع پخپله اعتراف کول لکه نوح بن ابی مریم دکوم ذکر چی مخکی تیر شو دغه شان میسره بن عبد ربه فارسی هم وو دی خپله اقرارکړی وو چی ما د علی رضی الله عنه د فضیلت باره کی ۷۰ احادیث د ځانه جوړ کړی د ی

۲ چی روایت د عقل پداسی طریقی سره مخالف وی چی دهغی تاویل ممکن نه وی لکه دا حدیث

د نوح کشتی د بیت الله څخه طواف وکړ او د مقام ابراهیم شاته یی دوه رکعته ادا کړل امام ذهبی دا روایت په میزان کی د عبدالرحمان بن زید بن اسلم عن ابیه عن جده په سند سره ذکرکړی دی او دا ضعیف راوی دی

**دویم سبب التهمه بالکذب ددی دوه صورتونه دی**

راوی د خلکو سره په خبرو کی دروغ وایی یا هغه د یو داسی حدیث په روایت کولو کی متفرد وی چی د شریعت د قواعدو خلاف وی

دداسی راوی حدیث ته متروک ویل کیږی د صدقه دقیقی راوی روایات ددی مثالونه دی هغه دفرقد نه روایت کوی هغه د سمره نه هغه د ابوبکر صدیق نه او د عمرو بن شمر روایات هغه د جابر جعفی نه هغه د حارث نه او هغه د علی بن ابی طالب څخه

**دریم څلورم او پینځم سبب**

د راوی سنګینی غلطیانی کول د هغی انتهایی غفلت او پداسی فسق کی واقع کیدل
چی دکفر درجی ته نه رسیږی
کوم علما چی د ثقه په مقابله کی د ضعیف راوی روایت په منکرکی نه منحصروی
هغوی ددی دری راویانو روایاتو ته هم منکر وایی

مثال : امام نسایی او ابن ماجه د ابو زکریا یحی بن محمد بن قیس په سند سره روایت
کوی هغوی د هشام بن عروه څخه هغه د خپل پلار عروه څخه هغه د عایشه رضی الله
عنها څخه مرفوعا روایت کوی

یعنی لږی کچه کهجوری د پخوکهجور سره خوری ځکه کله چی انسان دا خوری نو
شیطان غصه کیږی
امام نسایی فرمایی دا حدیث منکر دی ددی په روایت کولوکی ابو زکریا یحی بن
محمد متفرد دی دا یو صالح شیخ دی لیکن په ثقه والی کی ددی مرتبه دومره نده چی
ددی روایت په تفرد کی مقبول شی

شپږم سبب : وهم الراوی د راوی یو حدیث لره د وهم سره روایت کول
وهم لکه یو سند د موقوف په ځای مرفوع او د منقطع په ځای موصول بیانول دغه شان
وهم په متن کی د یو حدیث په بل کی دداخلولو په صورت کی واقع کیږی
بعضی اوقاتوکی وهم قادح وی لکه حدیث مرسلا بیانول اوکله غیر قادح وی لکه د
سند په یو راوی په نوم کی د وهم کولو علت

ددی ضابطه داده چی حدیث به غریب وی یا د هغی به د یو نه زیات سندونه وی او د
غریبوالی په صورت کی په سندکی د عیب په وجه په متن کی عیب لازم راځی او ددی
برعکس هم لیکن د زیاتو سندونو په صورت کی په یو شی باندی د جرح په وجه په بل
شی کی جرح نه ثابتیږی

په کوم حدیث کی چی وهم واقع وی هغی ته معل یا معلل وایی
په علوم حدیث کی دا یو مشکل علم دی ددی معرفت هغه څوک کولی شی چی چاته الله تعالی ژوروالی ته د رسیدو لپاره تیز دماغ ورکړی وی او هغه د رواتو په مراتبو او د احادیثو په متونو باندی وسیع علم لری

په سندکی د هغه وهم مثال چی قادح نه وی
په صحیح بخاری کی د راوی یعلی بن عبید طنافسی حدیث دی هغه د سفیان نه روایت کوی هغه د عمرو بن دینار نه هغه د عبدالله بن عمر نه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایی یعنی بایع او مشتری ته د بیع واپس کولو اختیار حاصل دی تر څو چی هغوی په یو مجلس کی وی
ددی حدیث په سندکی د سفیان څخه یعلی بن عبید وهم کړی دی او عمرو بن دینار یی د سفیان استاذ گرځولی دی حالانکه پدی حدیث کی دسفیان استاذ عبدالله بن دینار دی او هغه د عبدالله بن عمر څخه روایت کوی

امام بن معین فرمایی یعلی بن عبید د سفیان څخه په روایت کی ضعیف او د نورو راویانو څخه روایت کی ثقه د ی
په متن کی د وهم واقع کیدو مثال
د ابو سعید بن ابی مریم حدیث دی هغه د امام مالک څخه روایت کوی هغه د زهری نه هغه د انس رضی الله عنه نه چی نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایی د یو بل څخه نفرت مه کوی د یو بل سره حسد مه کوی د یو بل غیبت مه کوی
په اصل کی د ولا تنافسوا الفاظ د ابو هریره رضی الله عنه د حدیث وو لیکن ابن ابی مریم ته وهم شوی او دا الفاظ یی د انس رضی الله عنه په حدیث کی داخل کړی دی امام مالک د ابو الزناد څخه روایت کوی هغه د اعرج څخه هغه د ابو هریره رضی الله عنه نه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایی : د بدګمانی څخه بچ شی ځکه دا ډیره غټه ګناه ده چا پسی مه ورپسی کیږی او جاسوسی مه کوی او په خپل مابین کی د یو بل سره حسد مه کوی

د وهم پيژندلو طريقه : وهم د راوی د تفرد او د نورو د مخالفت په وجه پيژندلی شی لیکن پدیکی څه نور قراین هم شامليږی نيز ددی د پيژندلو يوه طريقه دا هم ده چی د حديث ټول اسانيد راجمع کړی شی او د ضبط او اتقان په اعتبار سره د راويانو درجی وپيژندل شی
امام علی بن المدينی فرمايی که د یو باب طرق راجمع نه کړی شی د هغی غلطيانی نه واضحيږی

اووم سبب : د راوی د نورو ثقاتو سره مخالفت او دا مخالفت په شپږ قسمه دی

۱ المدرج  د را په زبر سره د ادرجت الشی فی الشی نه مشتق دی ددی معنی ده چی يو شی په بل کی داخلول
او ددی دوه قسمه دی
۱ مدرج الاسناد هغه حديث چی د هغی د سند سياق بدل کړی شی او ددی ډير صورتونه دی
۱ د يو راوی سره دوه مختلف احاديث په دوه سندونو سره وی ليکن هغه دا دواړه ددی دوه سندونو څخه په يو سند سره بيان کړی يا د هغی څخه يو په يو خاص سند سره روايت کړی او ددويم حديث څخه په هغی کی څه اضافه وکړی

۲ د هغه سره په يو خاص سند سره متن دی مګر ددی متن څه حصه په بل سند سره ده نو دا راوی دی مکمل حديث لره په اول سند روايت کړی

۳ هغه د يو استاذ څخه يو حديث واوری ليکن د هغی يوه حصه ترينه په واسطه سره واوری ليکن بيا مکمل حديث بغير د واسطی څخه بيان کړی

۴ یو حدیث  د مختلفو راویانو څخه اخذکړی چی هغوی په جدا جدا الفاظو روایت کړی وی لیکن دا یی پداسی طریقی پیش کړی چی اختلاف ته پکی اشاره ونه کړی

۲ مدرج المتن : هغه حدیث چی د هغی په متن کی داسی الفاظ داخل کړی شی چی د هغی څخه نه وی
او اکثر ادارج د متن په اخرکی واقع کیږی او ددی د متن په اول کی واقع کیدل د متن په درمیان کی د واقع کیدو په نسبت کم وی

ددی مثال هغه روایت دی چی خطیب پدی سند سره روایت کړی ابی قطن و شبابه عن شعبه عن محمد بن زیاد عن ابی هریره رضی الله عنه مرفوعا اسبغوا الوضو ویل للاعقاب من النار
پدی حدیث کی د اسبغوا الوضو لفظ مدرج دی او د ابو هریره رضی الله عنه کلام دی دی وجی نه امام بخاری دا حدیث پدی سند سره روایت کړی دی ادم بن ابی ایاس عن شبعه عن محمد بن زیاد عن ابی هریره رضی الله عنه قال اسبغوا الوضو فان ابا القاسم صلی الله علیه وسلم قال ویل للاعقاب من النار
ددی حدیث د ذکرکولو نه پس خطیب بغدادی رحمه الله فرمایلی دی د شعبه څخه ددی حدیث په روایت کولوکی شبابه او ابو قطن ته وهم شوی دی لکه څنګه چی مونږ ددی وضاحت کړی دی

د ادراج د اقسامو څخه د ابن مسعود رضی الله عنه دا حدیث دی چی رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایی
بد فالی شرک دی او په مونږکی داسی یو تن نشته چی د بد فالی سوچ ورله نه راځی لیکن الله تعالی دا د توکل په ذریعه باندی ختموی
امام ترمذی دا روایت کړی دی او حسن صحیح ورته ویلی دی
بیا هغه فرمایی ما د بخاری څخه اوریدلی چی فرمایل یی وما منا الا دا الفاظ د ابن مسعود کلام دی

# د ادراج اسباب حکم او د پیژندلو طریقی

د ادراج اسباب ډیر زیات دی د هغی څخه بعضی په لاندی ډول دی
۱ د غریب الفاظو تفسیر
۲ د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دکلام څخه یو حکم استنباطول
۳ دشرعی حکم بیانول
امام زهری او نور ایمه فرمایی د غریب د تفسیر د مقصد نه علاوه د نورو مقاصدو لپاره ادارج کول صحیح ندی
ادارج په څو طریقو سره پیژندل کیږی د هغی څخه بعضی په لاندی ډول دی
۱ بعض راویان د مدرج عبارت وضاحت وکړی او هغی خپل قایل ته منسوب کړی
۲ ددی عبارت نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته منسوبول نا ممکن وی

# مقلوب حدیث

دی ته منقلب هم وایی هغه حدیث چی هغی کی یو راوی لفظ یا معنی بدل کړی وی او قلب په سندکی واقع کیږی لکه څنګه چی متن کی واقع کیږی

په سندکی قلب دادی چی یو حدیث د یو راوی څخه مشهور وی چی هغه روایت کړی دی لیکن د غرابت یا څه بل سبب په وجه د هغی په ځای پدغه طبقه کی یو بل راوی کیخودلی شی

د راویانو څخه داکار به حماد بن عمرو نصیبی کولو
امام بخاری فرمایی دا منکر الحدیث دی
ددی مثال دا حدیث دی
کله چی تاسو د مشرکانو سره په لاره کی میلاو شی نو په سلام باندی ابتدا مه کوی

حماد بن عمرو پدی کی قلب کړی دی هغه دا عن الاعمش عن ابی صالح عن ابی هریره څخه مرفوعا روایت کړی
لیکن دا روایت عن سهل بن ابی صالح عن ابیه عن ابی هریره څخه دی لکه دا امام مسلم روایت کړی

او په سندکی قلب د راویانو د نومونو په مخکی کولو او ورسته کولوکی واقع کیږی
مثلا مره بن کعب اوکعب بن مره پدی کی د یو راوی نوم د بل راوی د پلار د نوم په ځیر دی
ددی مثال هغه حدیث چی امام مسلم روایت کړی دی د وه کسانو باره کی چی الله به یی د قیامت په ورځ د خپل سوری لاندی کړی په کومه ورځ چی به هیڅ سوری نه وی پدی حدیث کی دی ورجل تصدق بصدقه فاخفاها حتی لا تعلم یمینه ما انفقت شماله دی اخری الفاظوکی قلب شوی دی او صحیح داسی دی لا تعلم شماله ما تنفق یمینه لکه دا بخاری روایت کړی دی او امام مسلم هم یو روایت پدی الفاظو سره کړی د ی
او د قلب یو صورت دا هم دی چی د یو متن سند د بل متن سره میلاو کړی شی او د هغی متن د بل سند سره میلاو شی
لکه دا کار د بخاری سره د بغداد خلکوکړی وو
دا واقعه خطیب په خپل کتاب تاریخ بغداد او ابن حجر په النکت علدکتاب ابن الصلاح کی ذکرکړی ده

# المزید فی متصل الاسانید

هغه دی چی هغی کی مخالفت د یو راوی د زیادت په وجه وی او دا په مینځ د سندکی په ظاهرکی متصل ښکاری
حکم : دی کی به اعتبار هغه سند لره وی چی د زیادت څخه خالي وی پدی شرط سره چی زیادت نه کونکی راوی به د هغه راوی څخه متقن وی چی زیادت یی کړی وی که نه وی نو د زیادت والا سند به راجح وی

ددی مثال دا حدیث دی چی امام مسلم او ترمذی پدی سند سره روایت کړی دی
عبدالله بن المبارک عن عبدالرحمان بن یزید عن جابر عن بسر بن عبیدالله عن ابی
ادریس الخولانی عن واثله بن الاسقع عن ابی مرشد الغنوی قال قال رسول الله صلی
الله علیه وسلم
رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي په قبرونو باندی مه کینی او مه هغی طرفته مونځ
کوی
امام ترمذی فرمایي چی امام بخاری فرمایلی دی د ابن المبارک دا حدیث غلط دی
دی کی ابن المبارک غلطی کړی ده او دی کی یی عن ابی ادریس زیات کړی دی اصل
کی دا بسر بن عبیدالله دی چی د واثله بن الاسقع نه روایت کوی

## المضطرب

د را په کسره سره هغه حدیث چی په مختلفو وجوهو سره روایت شوی وی او ټول وجوه
په قوت کی برابر وی
برابره ده که اختلاف د یو راوی د طرفه وی یعنی یو ځل حدیث په یو شان روایت کوی
او بل ځل د هغی مخالف
یا دا حدیث د یو نه زیات راویانو روایت کړی وی او د هغو څخه هر یو د جماعت
مخالف وی
اضطراب د حدیث دضعف سبب دی دا د راویانو د حافظی دکمزوری په وجه په سند
او متن دواړو کی واقع کیږی
بیا که د راوی د ضبط د وجوهاتو څخه یو وجه راجحه شی یا د مروی عنه صحبت ډیر
وی یا ددی نه علاوه د ترجیح کومه وجه ظاهر شی نو حکم به راجح وجی لره وی او
پدی وخت کی به په حدیث باندی د اضطراب حکم نه کیږی او نه به یی دا حکم وی
په متن کی د اضطراب واقع کیدو مثال : هغه حدیث دی چی امام ترمذی پدی سند سره
روایت کړی دی

عن شریک عن ابی حمزه عن الشعبی عن فاطمه بن قیس فقال ان للمال حقا سوی الزکاه
او همدا حدیث ابن ماجه رحمه الله پدی سند سره ذکرکړی دی او هغی کی دا الفاظ دی لیس فی المال حق

حافظ عراقی فرمایی دا داسی اضطراب دی چی د تاویل احتمال پکی نشته او دا هم ویل شوی دی چی تاویل یی ممکن دی هغه دا چی د حق نه مراد نفلی حق وی لکه د نفلی صدقی پشان او میلمه د احترام پشان او دکوم حق چی نفی شوی ده د هغی نه مراد واجب حق وی

## المصحف

هغه حدیث چی هغی کی د نقطو په اعتبار سره یو یا ډیر حروفوکی تبدیلی شوی وی حالانکه د لفظ تحریری صورت باقی پاتی وی
تصحیف په متن او سند دواړوکی واقع کیږی

په سندکی د تصحیف مثال : دا حدیث دی لتودن الحقوق الی اهلها
یعنی تاسو به ضرور د هر یو حقونه اداکوی
دا حدیث امام شعبه د عوام بن مراجم نه هغه د ابو عثمان هغه د عثمان بن عفان څخه مرفوعا روایت کوی
امام یحی بن معین دی کی تصحیف کړی دی او د عوام بن مراجم په ځای یی عوام بن مزاحم لوستلی دی

په متن کی د تصحیف مثال دا حدیث من صام رمضان ثم اتبعه ستا من شوال
چا چی د رمضان نه پس شپږ روژی ونیولی
ابو بکر صولی پدی کی تصحیف کړی دی او د ستا په ځای یی شیا لوستلی دی

**۶ المحرف**

هغه حدیث چی هغی کی د اعراب په لحاظ په یو یا دوه حروفوکی تبدیلی شوی وی او د لفظ اصل شکل په ځای پاتی وی

په سندکی د تحریف مثال د عقیل په ځای عقیل لوستل یعنی په ع باندی د زبر په ځای پیش لوستل

په متن کی د تحریف مثال د جابر رضی الله عنه دا حدیث دی
د خندق په ورځ د ابی ابن کعب رضی الله عنه د مټ رګ زخمی شو

غندر پدی کی تحریف کړی او د ابی په ځای یی ابی لوستلی دی ددی معنی داده چی د جابر رضی الله عنه پلار زخمی شوی وو

اتم سبب
د راوی مجهول والی
ددی دوه اسباب دی
۱ چی راوی د صفاتو نوم کنیت القابو پیشی او نسب په لحاظ سره ډیر وی او د یو خاص مقصد په غرض هغه په یو غیر مشهور صفت سره ذکرکړی شی چی د هغی په وجه خلک دا ګمان وکړی چی دا کوم بل راوی دی او ددی په نتیجه کی ددی راوی حال مجهول شی

مثال : محمد بن سایب الکلبی داسی راوی دی چی د نیکه طرفته منسوب شوی دی او محمد بن بشر ورته ویل شوی
او دده نوم حماد بن سایب هم دی کله دده کنیت او نضر ذکر شوی اوکله ابو هشام او کله ابو سعید داسی ښکار چی دا ډیر راویان دی لیکن دا یوکس دی
پدی موضوع باندی دا کتاب لیکل شوی الموضح لاوهام الجمع والتفریق فی النعوت

۲ چی راوی قلیل الحدیث وی د هغه د روایاتو تعدادکم وی
پدی موضوع باندی د الوحدان په نوم کتاب لیکل شوی دی

## د مجهول اقسام

مجهول په دوه قسمه دی
۱ مجهول العین ۲ مجهول الحال
**۱ مجهول العین** هغه راوی چی د هغه څخه روایت کونکی راوی یوکس وی او توثیق یی چا نه وی کړی
دداسی راوی روایت به مردود وی که توثیق یی چا وکړ بیا به یی روایت مقبول وی اګر که دده توثیق کونکی همدغه راوی وی چی روایت یی تری کړی دی لیکن پدی شرط چی د جرح او تعدیل د ایمه څخه به وی

**۲ مجهول الحال :** هغه راوی چی د هغه څخه روایت کونکی راویان دوه یا زیات وی او چا یی توثیق نه وی کړی
دیته مستور هم وایی
د راوی د حالاتو د وضاحت پوری به پدی حدیث کی توقف کولی شی

## مبهم او د هغی د روایت حکم

مبهم هغه راوی دی چی د اختصار د وجی نه د هغه د نوم وضاحت نه وی شوی لکه د هغه څخه روایت کونکی راوی ووایی ماته یو ثقه یا شیخ یا یوکس حدیث بیان کړی دی
د راجح مسلک مطابق دداسی راوی روایت مقبول ندی اګر چه ابهام د توثیق د الفاظو سره وی لکه راوی ووایی ماته ثقه یا ثبت راوی دا حدیث بیان کړی دی ځکه ممکن ده چی دا راوی د نورو علماو په نزد ضعیف وی

**نهم سبب**

## بدعت ددی لغوی معنی : ایجادول نوی شی جوړول دی

اصطلاحی تعریف په دین کی نوی کار پیدا کول
بدعت په دوه قسمه دی
**۱ مکفره** هغه بدعت چی د هغی په وجه بدعتی کافر وګرځی داسی چی هغه د یو داسی شی انکار وکړی چی هغی باندی اجماع وی یا په تواتر سره ثابت وی
دداسی راوی روایت به ناقابل قبول وی

**۲ مفسقه** هغه بدعت چی هغی په وجه بدعتی فاسق ګرځی او ددین نه نه خارجیږی دداسی بدعتی روایت به مقبول وی لیکن پدی شرط چی هغه به خپل بدعت طرفته دعوت نه ورکوی یا به داسی حدیث نه روایت کوی چی د هغی نه یی مذهب ته تقویت میلاویږی
او دا د جمهور مسلک دی او راجح هم دی

**لسم سبب**

## سو الحفظ سی الحفظ هغه راوی دی چی د هغی غلطیانی د خوبیانو اوصحیح خبرو  څخه زیاتی وی

ددی دوه قسمه دی
چی د راوی حافظه د ماشوموالی نه خرابه وی او دا حالت تر مرګه پوری برقرار وی

بعض اصولیان دداسی راوی روایت ته شاذ وایی

۲ دا سو الحفظ د حافظی خراب والی په راوی باندی د بوډا والی یا د نظر د خرابیدو په سبب راغلی وی یا یی کتابونه سوزول شوی وی
داسی راوی ته مختلط ویل کیږی
دداسی راوی هغه روایات به قبلولی شی چی د اختلاط نه مخکی یی روایت کړی وی اوکوم چی د اختلاط نه پس روایت کوی هغه به مردود وی البته په هغه روایاتوکی به توقف کولی شی چی پته یی نه وی د اختلاط نه مخکی یی راویت کړی دی یا وروسته

# مرفوع موقوف مقطوع

د سند د اخری حصی په اعتبار سره حدیث په دری قسمه دی
مرفوع موقوف مقطوع

**مرفوع حدیث او ددی اقسام**

**مرفوع :** هغه قول فعل یا تقریر چی نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته صریحا یا حکما منسوب وی
ددی دری اقسام دی ۱ مرفوع قولی صریحی ۲ مرفوع فعلی صریحی ۳ مرفوع تقریری صریحی
۴ مرفوع قولی حکمی ۵ مرفوع فعلی حکمی ۶ مرفوع تقریری حکمی

**۱ مرفوع قولی صریحی** یعنی صراحتا د نبی کریم صلی الله علیه وسلم قول وی لکه یو صحابی ووایی ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه داسی اوریدلی دی یا یو صحابی یا تابعی ووایی رسول الله صلی الله علیه وسلم به داسی فرمایل

**۲ مرفوع فعلی صریحی** چی صراحتا د نبی کریم صلی الله علیه وسلم فعل وی لکه یو صحابی ووایی ما رسول الله صلی الله علیه وسلملیدلی چی داسی یی کول یا یو صحابی یا تابعی ووایی نبی کریم صلی الله علیه وسلم به داسی کارکولو

**۳ مرفوع تقریری صریحی**
په کوم کی چی صراحتا د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د حاضریدو ذکر وی
(یعنی چی هغه پدی موقع حاضر وو)
لکه یو صحابی ووایی ما د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په موجودگی کی داسی کار کړی دی یا یو صحابی یا تابعی وغیره ووایی فلانی صحابی د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په موجودگی کی دا کارکړی وو او نبی علیه السلام د هغی څخه منع نه وه کړی

**۴ مرفوع قولی حکمی** چی صراحتا کی د نبی علیه السلام قول نه وی لیکن د هغی حکم ورته ورکړی شوی وی
لکه هغه صحابی چی د اهل کتابو څخه په روایت کولو باندی مشهور نه وی هغه داسی څه روایت کړی چی د اجتهاد او عقل گنجایش پکی نه وی
نیز ددی تعلق د حدیث د مشکل الفاظو د تفسیر سره هم نه وی
لکه یو صحابی د مخلوق د ابتدا باره کی یا د مستقبل دکارونو باره کی لکه د قیامت علامات فتنو وغیره باره کی خبر ورکول یا یا د یو عمل په کولو د مخصوص ثواب حاصلیدلو یا سزا واقع کیدو باره کی خبر ورکړی
**۵ مرفوع فعلی حکمی :** چی صراحتا د نبی علیه السلام فعل نه وی خو ددی حکم ورته ورکړی شوی وی
لکه یو صحابی داسی کار وکړی چی د اجتهاد څه تعلق هغی سره نه وی لکه علی رضی الله عنه دکسوف په مونځ کی په هر رکعت کی د ۲ رکوع گانو څخه زیاتی کړی وی

**مرفوع تقریری حکمی** لکه یو صحابی داسی خبر ورکړی چی خلکو به د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په زمانه کی دا کارکولو او هغه به ترینه منع نه کوله
هغه عبارات کومو ته چی د مرفوع حدیث حکم ورکړی شوی دی
د یو صحابی دا وینا چی سنت دا دی چی .. یا مونږ ته ددی کار حکم شوی وو

یا مونږ ددی شی څخه منع کړی شوی وو
یا یو صحابی د څخه عمل باره کی حکم ولګوی چی دا دالله او رسول تابعداری ده یا نافرمانی
لکه عمار بن یاسر رضی الله عنه چی فرمایلی وو چا چی د شک په ورځ روژه ونیوله نو هغه د ابو القاسم صلی الله علیه وسلم نافرمانی وکړه

# موقوف حدیث ، صحابی او د هغی د صحبت پیژندلو طریقه

**موقوف** : هغه قول فعل یا تقریر چی یو صحابی طرفته منسوب وی
**صحابی :** هغه کس چی د ایمان په حالت کی د نبی علیه السلام سره میلاو شوی وی او د ایمان په حالت کی وفات شوی وی او د راجح قول مطابق که هغه مرتد شوی وی او بیا یی د مرګ نه مخکی ایمان راوړی وی

# د صحبت پیژندلو طریقی

۱ تواتر ۲ شهرت ۳ د بعضی صحابی د یوکس باره کی خبر ورکول چی دا صحابی دی
۴ د بعضی ثقه تابعینو د یو چا باره کی خبر ورکول چی دا صحابی دی
۵ د یوکس خپل ځان باره کی خبر ورکول چی زه صحابی یم پدی شرط سره چی دعوی یی ممکن وی

# مقطوع حدیث ، تابعی ،مخضرم ، او مقطوع او منقطع کی فرق

**مقطوع** : هغه قول فعل یا تقریر چی تابعی یا د هغه نه ښکته بل چا ته منسوب وی

**په مقطوع او منقطع کی فرق**

مقطوع د رفع او وقف په شان د متن صفت دی او منقطع د تعلیق او ارسال پشان د سند صفت دی

**تابعی** : هغه کس چی د صحابی سره یی د ایمان په حالت کی ملاقات شوی وی او د ایمان په حالت کی وفات شوی هم وی

**مخضرم** : هغه کس چی د جاهلیت او اسلام په دورکی موجود وی لیکن د نبی علیه السلام سره یی ملاقات نه وی شوی
د مخضرمینو تعداد د ۲۰ څخه زیات دی دهغی څخه څلور دا دی
احنف بن قیس ، ابو مسلم خولانی ،عطاردی او ابو عثمان النهدی
د راجح قول مطابق مخضرمین په تابعینوکی حسابیږی

# د سند عالی والی او نازل والی

الله تعالی دی امت ته دا خصوصیت ورکړی چی ددوی سند د نبی کریم صلی الله علیه وسلم پوری متصل دی
عبدالله بن المبارک رح فرمایی سند ددین برخه ده که سند نه وی نو هر سړی به د ځانه خبری کولی څه چی یی زړه غوښتی
سفیان ثوری فرمایی سند د مومن اسلحه ده
د سند د راویانوکموالی ته علو او ډیر والی ته نزول ویل کیږی
دا دواړه د سند صفات دی
د سند عالی والی د نزول نه بهتر دی لیکن پدی شرط سره چی په عالی سندکی به څه ضعف نه وی ځکه د ضعف په صورت کی د عالی سند هیڅ غوره والی نشته خصوصی طور سره که هغی کی کذاب یا متهم بالکذب راوی وی

ابن الصلاح رحمه الله فرمایی د علو په وجه سند د خلل او عیبونو څخه پاکیږی ځکه د سند د هر راوی څخه د غلطی واقع کیدو احتمال وی او څومره چی د سند راویان کم وی دا احتمال هم کم وی
د علو او نزول په اعتبار سره د حدیث اقسام
پدی اعتبار سره حدیث په دوه قسمه ده ۱ عالی ۲ نازل

**عالی حدیث** هغه دی چی د هغی د سند د راویانو تعداد د یو بل سند په اعتبار سره کم وی چی دا حدیث پری مروی دی
**نازل حدیث** هغه دی چی د هغی د سند د راویانو تعداد د یو بل سند په نسبت زیات وی چی دا حدیث پری روایت دی
بیا خبر عالی او حدیث نازل په دوه قسمه دی مطلق نسبی

**حدیث عالی مطلق**

هغه حدیث دی چی د نبی کریم صلی الله علیه وسلم پوری یی د راویانو تعدادکم وی په نسبت د بل سند سره چی دا حدیث پری منقول دی
حدیث نازل مطلق ددی بر ضد دی یعنی هغه حدیث چی د نبی کریم صلی الله علیه وسلم پوری یی د سند د راویانو تعداد د بل سند به نسبت زیات وی چی دا حدیث پری روایت دی

**حدیث عالی نسبی** هغه دی چی سند یی په کمو راویانو سره امام شعبی یا امام مالک پشان علماو ته رسیدلی وی د بل سند په نسبت چی دا حدیث پری روایت وی
او حدیث نازل نسبی هغه دی چی سند یی په زیاتو راویانو سره امام شعبی یا امام مالک پشانته علماو ته رسیدلی وی د هغه سند په نسبت زیات وی چی دا حدیث پری روایت شوی دی

# د نسبي انواع

نسبي په څلور قسمه دی ۱ موافقت ۲ بدل ۳ مساوات ۴ مصافحه

**موافقت** : دیته وایی چی راوی د مصنف شیخ ته په یو بل سند سره ورسیږی چی د هغی د راویانو تعداد د هغی سند په نسبت کم وی چی مصنف پری خپل شیخ ته رسیدل کړی دی

ددی مثال : حافظ ابن حجر فرمایی : امام بخاری یو حدیث د ابن قتیبه څخه روایت کوی هغه د امام مالک نه ....

وس که مونږ دا حدیث د بخاری په واسطی روایت کوو نو زمونږه او د قتیبه په مابین کی ۸ واسطی رائحی

اوکه مونږ دا د قتیبه څخه د ابو العباس سراج په واسطی روایت کړو نو ۷ واسطی راځی نو پدی کمو واسطو سره زمونږ د امام بخاری سره د هغه په شیخ کی موافقت حاصل شو

۲ **بدل** دیته وایی چی یو راوی د مصنف د شیخ شیخ یعنی د استاذ استاذ ته په یو بل سند سره رسیدل وکړی چی د مصنف د سند په نسبت سره عالی وی

ددی مثال : ابن حجر رحمه الله دی مذکوره حدیث ته اشاره کړی او فرمایی همدا سند په یو بل طریق سره قعنبی عن مالک ته رسیدلی دی نو پدی کی د امام بخاری د استاذ استاذ قعنبی د قتیبه څخه بدل دی

اکثر د موافقت او بدل اعتبار هله وی چی سند عالی وی او دی نه بغیر هم ددی استعمال کیږی

۳ **مساوات** : د یو راوی د سند د راویانو تعداد د مصنف د سند د راویانو پشان وی دیته مساوات وایی

مثال : هغه احادیث چی په هغی کی د ابن حجر رح او نبی کریم صلی الله علیه وسلم په درمیان کی لس واسطی دی نو د امام ترمذی او نسایی اسانید هم په لسو واسطو باندی مشتمل دی

امام ترمذی د سورت اخلاص د فضیلت باره کی او امام نسایی په کتاب الصلاه کی د ایوب انصاری رضی الله عنه څخه مرفوعا روایت نقل کړی دی چی نبی کریم علیه السلام فرمایی قل هو الله احد د قران ددریمی حصی برابر دی
او نسایی فرمایی زما په علم کی نشته چی د یو حدیث سند دی ددی حدیث د سند نه اوږد وی ددی په سندکی شپږ تابعین دی
ابن حجر رحمه الله په یوکتاب کی ۱۰ احادیث جمع کړی دی او د هغی نوم یی العشر العشاریه ایخی دی
حافظ عراقی فرمایی: مخکی دورکی په اسانیدو کی مساوات وو لیکن وس دی زمانه کی په معین حدیث کی نشی کیدای البته ددی واقع کیدل په مطلق تعدادکی ممکن دی

۴ **مصافحه** : دیته وایی چی د یو راوی د سند د راویانو تعداد د مصنف د شاګرد د سند د تعداد برابر وی
ګویا که دا راوی ددغه مصنف سره میلاو شو دی وجی نه دیته مصافحه وایی لکه کله چی خلک یو بل سره میلاو شی نو مصافحه کوی

# د اقران او مدبج روایت

القرینان هغه دوه راویان چی په عمر او د استاذانو څخه په روایت کولوکی یو بل ته نژدی وی
**روایه الاقران:** ددوه ملګرو د یو بل څخه روایت کول لکه اعمش چی د خپل ملګری تیمی څخه روایت کوی
**روایه المدبج:** دا لفظ د دیباجتی الوجه نه ماخوذ دی یعنی د مخ دواړه طرفونه لکه څنګه چی د مخ دواړه طرفونه د یو بل برابر وی دغه شان په مدبج روایت کی راوی او مروی عنه د یو بل برابر وی دی وجی نه دی روایت ته مدبج وایی

**اصطلاحی تعریف** : ددوه ملګرو د یو بل څخه حدیث روایت کول لکه عایشه او ابو هریره چی د یو بل څخه روایت وکړی دغه شان امام مالک او اوزاعی او احمد او ابن المدینی چی د یو بل څخه روایت کوی
په مدبج او اقرانوکی د عموم او خصوص نسبت دی
ددی قسم د پیژندلو فواید

۱ په سند باندی دا ګمان کول چی دی کی زیادت شوی ددی په پیژندلو سره دا شبهه ختمیږی
یعنی یوکس په سند د الاعمش عن التیمی کی دا ګمان ونه کړی چی دی کی تیمی زیات شوی دی ځکه دا خو د اعمش شیخ ندی بلکی د هغه ملګری دی
۲ د عن په واو سره د بدلولو نه بچ کیدل یعنی څوک دا عبارت عن عایشه عن ابی هریره داسی ونه ګڼړی عن عایشه و ابی هریره

# د اکابرو د اصاغرو څخه او د اصاغرو د اکابرو څخه روایت کول

**روایه الاکابر عن الاصاغر :** د یو راوی د هغه چا څخه روایت کول چی په عمر یا علم کی د هغه نه کم وی لکه د امام زهری د مالک نه روایت کول د امام مالک روایت د عبدالله بن دینار نه دغه شان د صحابه و د تابعینو څخه لکه عبدالله بن عمر ابن مسعود ابن الزبیر ابن عباس دکعب الاحبار څخه روایت وکړی
او د پلار د ځوی څخه روایت وکړی دا هم ددی نوع څخه دی
ددی قسم د پیژندلو فواید
پدی سره په سندکی د قلب واقع کیدو دګمان نه اطمینان حاصلیږی ځکه عام طور سره اصاغر د اکابرو څخه روایت کوی

**روایه الاصاغر عن الاکابر**

یو راوی د خپل ځان څخه د عمر او علم په لحاظ سره مشر راوی نه روایت کول
سابق او لاحق
سابق او لاحق دداسی دوه راویانو د یو استاذ څخه روایت کول چی د مرګ په لحاظ
سره یو مخکی وی او یو وروسته او ددواړو په وفات کی ډیر جدا والی وی

مثال: ابو العباس سراج د امام بخاری او مسلم استاذ دی د هغه څخه امام بخاری او ابو
الحسین خفاف دواړه روایت کوی حالانکه ددواړو په وفات کی ۱۴۰ کاله فرق دی ځکه
چی امام بخاری ۲۵۶ کی وفات شوی دی او خفاف **۳۹۳** یا **۳۹۴** یا **۳۹۵**
ددی قسم فایده داده چی چونکه متاخر راوی د مرګ لحاظ سره د متقدم څخه ډیر
وروسته دی نو په سندکی د انقطاع خدشه پیدا کیږی ددی د ازالی په غرض ددی
پیژندل ضروری دی

# مهمل

د راوی دداسی دوه استاذانو څخه روایت کول چی د هغوی نومونه د پلار نومونه وغیره
یو شان وی او په سندکی د هیڅ یو تخصیص نه وی شو ی
پداسی صورت کی که دواړه استاذان ثقه وی نو جهالت څه اثر نه کوی
لکه د امام بخاری او ابن وهب په مابین کی د احمد واسطه ده او دا احمد بن صالح یا
احمد بن عیسی دواړه کیدای شی او دواړه ثقه دی نو ددی په سند باندی هیڅ اثر نه
کیږی
لیکن که یو راوی ثقه وی او بل ضعیف بیا به جهالت نقصانی وی
لکه سلیمان بن داود خولانی او سلیمان بن داود یمامی دی کی اولنی ثقه او دویم
ضعیف دی

## په مهمل او مبهم کی فرق

د مهمل راوی نوم د اشتباه سره ذکر وی او د مبهم راوی نوم د سره ذکر نه وی

د روایت بیانول نه پس په راوی باندی د نسیان طاری کیدل
د راوی د هغه روایت څخه انکارکول چی خپل شاګرد ته یی بیان کړی وی
که استاذ حتمی او یقینی طور سره انکار وکړی نو روایت به مردود وی لکه هغه وایی
ما دی شاګرد ته دا حدیث ندی بیان کړی یا ماباندی دروغ وایی وغیره وغیره
یاد ساتل پکار دی چی پدی صورتحال کی د روایت مردودیدل د شیخ او شاګرد لپاره
څه عیب ندی ځکه دوی کی یو هم د بل په نسبت د عیب مستحق ندی
البته که د شیخ انکار په تردد او شک باندی بنا وی لکه هغه ووایی ما ته یاد ندی چی
ما ورته بیان کړی دی یا زه نه پیژنم وغیره نو دا روایت به د شیخ په نسیان او د شاګرد
په یاداشت باندی محمول وی ځکه په قطعی طور سره یوکار ثابتونکی په هغه چا
باندی مقدم وی چی د تردد سره نفی کوی
امام دارقطنی پدی موضوع باندی کتاب لیکلی دی د هغی نوم دی من حدیث ونسي

ددی مثال : دا حدیث دی رسول الله صلی الله علیه وسلم د یوګواه او قسم په رڼا کی
فیصله کړی ده
دا روایت امام ابو داود امام ترمذی د سهیل بن ابی صالح نه مرفوعا روایت کړی دی
سهیل دا د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار نه او هغه د ابو هریره رضی الله عنه
څخه روایت کړی دی
عبدالعزیز بن محمد راوی فرمایی ربیعه بن عبدالرحمان ماته داحدیث د سهیل څخه
بیان کړی دی لیکن کله چی زه پخپله د سهیل سره میلاو شوم او ما ترینه ددی متعلق
سوال وکړ نو هغی دا ونه پیژنده ما ورته وویل چی ربیعه دا حدیث ماته ستا د طرفه بیان
کړی دی
ددی واقعی نه پس به سهیل دا حدیث پدی سند سره بیانوو ماته عبدالعزیز بیان کړی
هغی ته ربیعه او ربیعه زما څخه او ما د ابو هریره څخه روایت کړی دی

# مسلسل

هغه حدیث دی چی د هغی ټول یا بعضی راویان د رواتو یا د حدیث په یو وصف باندی اتفاق وکړی

د رواتو د صفاتو څخه مراد د هغوی اقوال او افعال دی او د روایت د صفاتو څخه مراد هغه امور دی چی د هغی تعلق د حدیث د ادا کولو د صیغو سره وی او د هغی د زمانی او مکان سره وی

ددی فایده داده چی دینه دا معلومیږی راویانو دا حدیث په مضبوط طور سره یادکړی دی

ددی مثال : ابن عساکر په التاریخ کی فرمایی ابو الحسن علی بن مسلم فقیه مونږ ته حدیث بیان کړ او خپله ګیره یی ونیوله هغه فرمایی عبدالعزیز بن احمد ماته دا حدیث بیان کړ او خپله ګیره یی ونیوله هغوی وایی ابوبکر مونږ ته دا حدیث بیان کړ او خپله ګیره یی ونیوله هغوی وایی محمد بن اسحاق مونږ ته دا حدیث بیان کړ او خپله ګیره یی ونیوله

هغوی وایی احمد بن شهاب مونږ ته حدیث بیان کړ او خپله ګیره یی ونیوله هغه وایی سلیمان بن شعیب ماته دا حدیث بیان کړ او خپله ګیره یی ونیوله

هغه وایی شهاب بن خراش ماته دا حدیث بیان کړ او خپله ګیره یی ونیوله

هغه وایی یزید رقاشی ماته دا حدیث بیان کړ او خپله ګیره یی ونیوله

هغه وایی ماته انس بن مالک رضی الله عنه دا حدیث بیان کړ او خپله ګیره یی ونیوله

هغه فرمایی ما د رسول الله علیه السلام څخه اوریدلی دی یوکس تر هغه پوری مومن کیدای نشی تر څو چی په تقدیر شر او خیر باندی ایمان رانه وړی

دغه شان د معاذ رضی الله عنه نه روایت دی چی رسول الله صلی الله علیه وسلم ماته فرمایلی وو ای معاذ زه تا سره محبت کوم ته د هر مونځ په اخرکی دا دعا لوله

کوم راوی چی دا حدیث روایت کړی هغه ددی الفاظ تسلسل برقرار ساتلی انی احبک ...

# متفق او مفترق ، موتلف او مختلف ، متشابه

د راویانو د نومونو لقبونو نسبونو څخه متفق او مفترق او موتلف مختلف او متشابه اهم اقسام دی

کوم کس چی د علم حدیث سره تعلق لری او ددی علومو څخه ناواقف وی هغه به د جرح او طعن څخه په حفاظت نه شی

**متفق او مفترق :** د راویانو د نومونو او د هغوی د پلرونو د نومونو یو شان والی په تلفظ او خط کی دیته متفق وایی او د هغوی د ذات جدا والی ته مفترق وایی

لکه عبدالله بن عمر او عبدالله بن عباس صرف په نومونوکی یو شان دی او عبدالله بن زید بن عاصم او عبدالله بن زید بن عبد ربه په نومونو او د پلرونو په نومونوکی یو شان دی

ددی نوع فایده داده چی انسان د اختلاط او اشتباه څخه په حفاظت شی

ددی علم نه د جهالت په وجه کله کله په مختلفو راویانو باندی د یوکس ګمان کیدای شی لکه دا غلطی د بعضی علماو څخه واقع شوی ده او بعضی هم نام راویان اکثر ضعیف وی نو ثقه ضعیف او ضعیف ثقه وګرځول شی

**موتلف او مختلف** د رواتو د نومونو یا القابو یا انسابو په خط کی یو شان والی او په تلفظ کی اختلاف ته موتلف او مختلف وایی

لکه مسور او مسور دغه شان سلام او سلام

ددی فایده داده چی تحریف او تصحیف نه محفوظ شی

**متشابه** دیته وایی چی د رواتو نومونه په تلفظ او خط دواړوکی متفق شی او د هغوی د پلارانو نومونه په تلفظ کی مختلف او خط کی متفق شی یا ددی برعکس

لکه محمد بن عقیل او محمد بن عقیل او مشهور تابعی شریح بن النعمان او د امام بخاری استاذ سریح بن النعمان

# د حدیث تحمل یعنی ( زده کړه ) او د حدیث د ادا کولو صیغی

**تحمل الحدیث** : د استاذانو څخه حدیث روایت کول یا د هغی علم حاصلول
د راجح ترین مسلک مطابق د حدیث د تحمل لپاره د راوی لپاره شرط پوهه او تمییز دی

**الادا** : د روایت کولو څخه وروسته د حدیث مخکی بیانول
دکومو راویانو روایت چی حجت وی په هغوی کی د عدالت او ضبط موجود والی ضروری د ی

# د حدیث د تحمل طریقی او دهغی د ادا کولو صیغی

۱ السماع ۲ القراه ۳ الاجازه ۴ المناوله ۵ المکاتبه ۶ الاعلام ۷ الوصیه ۸ الوجاده

**۱ السماع** : یعنی استاذ د خپل ذهن نه یا کتاب نه احادیث بیانول او د راوی هغی لره اوریدل

د تحمل دا طریقه د باقی ټولو طریقو څخه بهتره ده

ددی طریقی د ادا والی صورتونه : سمعت او سمعنا فلانا ما دا یا مونږ دا خبره د شیخ نه اوریدلی ده بیا حدثنی او حدثنا ماته یا مونږ ته شیخ حدیث بیان کړی دی بیا اخبرنی او اخبرنا ماته یا مونږ ته فلانی شیخ خبر راکړی دی

بیا انبانی او انبانا مونږ ته شیخ خبر راکړی دی

اولنی لفظ په سماع باندی واضح دلالت کوی

**۲ القرات** : یعنی راوی شیخ مخی ته یو حدیث قرات کړی بعض اصولیان دی طریقی ته عرض وایی یعنی پیش کول ځکه راوی چی هر څه قرات کوی هغه خپل استاذ ته پیش کوی

او ددی هیڅ فرق نشته چی طالب علم پخپله په خپل شیخ باندی د ذهن یا دکتاب څخه قرات وکړی یا یو بل کس قرات کوی او دی یی اوری البته چی څه ویل او قرات کیږی باید استاذ د هغی حافظ وی یا یو بل ثقه راوی اصل نسخی ته ګوری او اوریدل کوی

ددی طریقی د ادا صورتونه : قرات ما په شیخ باندی حدیث ولوسته ۲ قری علی فلان وانا اسمع زما شیخ باندی قرات کیده او ما اوریده
او دا طریقه د سماع د صیغو سره ادا کیږی لیکن پدی شرط چی د قرات قید به پکی لګول شوی وی لکه حدثنی فلان قراه عله فلانی ماته حدیث بیان کړی پدی حال چی هغه باندی قرات کولی شو
د مرتبی په لحاظ سره عرض د سماع مساوی ( برابر ) دی یا د هغی نه کم یا ډیر دی ؟
دی کی مختلف اقوال دی ددی څخه راجح دادی چی د سماع مرتبه اوچته ده او ددی دلیل د نبی کریم صلی الله علیه وسلم طریقه ده چی هغه به خلکو ته قران اورووو او هغوی به زده کوو

۳ **الاجازه** : د استاذ په تلفظ یا لیکلو سره خپل شاګرد ته د حدیث د روایت کولو اجازت ورکول

**ددی پینځه اقسام دی**

۱ معین کسانو ته د معین احادیثو د روایت کولو اجازت ورکول
لکه شیخ ووایی زه تاته د صحیح مسلم د احادیثو د روایت کولو اجازت درکوم
۲ معین افرادو ته دغیر معین احادیثو د روایت کولو اجازت ورکول
لکه شیخ خپل شاګرد ته ووایی زه تاته د هغه ټولو احادیثو د روایت کولو اجازت درکوم چی تا ما څخه اوریدلی دی
۳ غیر معین افرادو ته د معین احادیثو د روایت کولو اجازت ورکول لکه شیخ ووایی زه هر هغه کس ته د صحیح بخاری د روایت کولو اجازت ورکوم چی ما سره میلاو شوی وی

۴ غیر معین افرادو ته د غیر معین احادیثو د روایت کولو اجازت ورکول
لکه شیخ ووایی : زه خپل هم عصرو ته د ټولو احادیثو د روایت کولو اجازت ورکوم
۵ هغه معدوم کس ته اجازت ورکول چی د موجود کس تابع وی

لکه شیخ ووایی زه فلانی سړی ته او د هغه څخه ټول پیدا کیدونکی اولادو ته د فلانی فلانی حدیث د روایت کولو اجازت ورکوم

**۴ المناوله : ددی دوه قسمه دی**
۱ هغه مناوله چی د اجازت سره مقرونه وی دا په مطلق طور سره د اجازت اعلی قسم دی ددی صورت دادی چی شیخ خپله اصلی یا د هغی سره تقابل شوی نسخه خپل شاګرد ته ورکړی او ووایی د د فلانی استاذ څخه زما روایات دی او زه تاته ددی د روایت کولو اجازه درکوم
او شرط به دا وی چی دا نسخه به د شاګرد سره عاریه یا د هبه په طور یا هغه به یی مالک وی تر دی چی مخکی یی خلکو ته بیانول ممکن وی
۲ هغه مناوله چی اجازت پکی نه وی
ددی صورت دا دی چی شیخ خپله اصلی نسخه یا د هغی قایم مقام خپل شاګرد ته ورکړی او ورته ووایی دا زما د فلانی شیخ څخه روایاتو والا نسخه ده
جمهور د مناوله دی قسم ته هیڅ اعتبار نه ورکوی
د اجازت یا مناولت د ادا کولو صورتونه
حدثنی فلان مناوله او اجازتا او اخبرنی فلان اجازتا او مناوله
ماته فلانی دا حدیث د مناولی په صورت کی بیان کړی یا د اجازه په صورت کی

**۵ المکاتبه** : دیته وایی چی شیخ خپل موجود شاګرد یا یو غیر موجود کس لپاره خپل احادیث پخپله ولیکی د خط په صورت کی یا په بل چا باندی ولیکی
د مناوله په شان ددی هم دوه قسمه دی
۱ مکاتبه د اجازت سره : دا قسم په قوت او صحت کی د هغه مناوله په شان دی چی اجازت پکی وی
۲ هغه مکاتبه چی اجازت پکی نه وی دا هم په قوت او صحت کی د هغه مناوله پشان ده چی اجازت پکی نه وی

۶ **الاعلام** :د شیخ داسی ویل چی داکتاب د فلانی استاذ څخه زما په اوریدل شوی روایاتو مشتمل دی

۷ **وصیت** :د مرګ یا سفر په وخت کی د استاذ خپل کتاب باره کی وصیت کول چی یو کس ته ورکړل شی
د وصیت د اداکولو صورت : اوصی الی فلان فلانی ماته ددی حدیث د روایت کولو وصیت کړی دی

۸ **وجادت** : د راوی داسی حدیث یاکتاب لره موندل چی د خپل استاذ په خط باندی لیکل شوی وی او هغه یی پیژنی
د وجادت په صورت کی د اداکولو صیغه : وجدت بخط فلان ما دا حدیث د فلانی شیخ په خط سره وموندہ
یا قرات بخط فلان
د وجادت سره روایت کول د منقطع د صورتنو څخه دی
د راجح مسلک مطابق هغه احادیث چی د اعلام وصیت وجادت په ذریعه نقل شی هغی کی اجازت شرط دی

# جرح او تعدیل

کوم عالم چی په راویانو جرح یا د هغوی تعدیل کوی هغه کی باید لاندینی صفات موجود وی
علم تقوی ورع صدق د تعصب څخه پاکوالی د توثیق او جرح د اسبابو معرفت
توثیق او جرح به تر هغه پوری نشی قبلولی تر څو چی دا عالم بیدار با خبر او ددی د اسبابو معرفت ونلری
کله چی د یو راوی باره کی د جرح مفسر او تعدیل تعارض راشی نو جرح مفسر به مقدم وی

حافظ ابن حجر فرمایی د اصولیانو دا قاعده چی صرف جرح مفسر به قبلولی شی د هغه رواتو متعلق ده چی د هغوی په جرح او توثیق کی اختلاف وی البته کوم راویان چی دومره ناشنا دی چی د هغی باره صرف د بعضی محدثینو دا وینا موجود وی چی متروک دی یا ضعیف وغیره نو پدی صورت کی به جرح مبهم هم معتبره وی
یاد ساتل پکار دی چی جرح او تعدیل هر یو په دوه قسمه دی
۱ مفسر هغه جرح یا تعدیل چی د هغی د سبب وضاحت شوی وی
۲ مبهم هغه جرح یا تعدیل چی د هغی د سبب وضاحت نه وی کړی شوی

# د توثیق او تجریح مراتب

امام سخاوی د الفیه په شرح کی او شیخ اکرم سندی په امعان النظر بشرح شرح نخبه الفکرکی د توثیق او جرح د الفاظو شپږ مراتب بیان کړی دی چی هغه په لاندی ډول دی
اولنی مرتبه ( چی ټولوکی اعلی ده ) هغه وصف چی په مبالغه باندی دلالت کوی یا اسم تفضیل سره وی  لکه فلان اوثق الناس فلانی راوی د ټولو نه ډیر ثقه دی یا اثبت الناس د ټولو خلکو نه ډیر د حدیث یادونکی دی
الیه المنتهی فی الضبط فلانی راوی باندی خو د قوت حافظی انتها شوی ده
لا اعرف له نظیرا زما د علم مطابق ددی پشان بل راوی دسره شته نه
دویمه مرتبه فلان لا یسال عنه د فلانی راوی باره کی تپوس کول بی ځای دی ځکه هغه انتهایی ثقه راوی دی
دریمه مرتبه هغه الفاظ د تاکید سره راوړل چی په توثیق باندی دلالت کوی
لکه ثقه ثقه یا ثبت حجه یا ثقه ضابط وغیره وغیره
پدی سلسله کی ډیر تاکیدات د ابن عیینه په اقوالوکی موجود دی لکه هغه فرمایی مونږ ته عمرو بن دینار دا حدیث بیان کړی او هغه ثقه وو ثقه وو ثقه وو تر دی چی نهه مرتبه یی دا لفظ تکرارکړ

څلورمه مرتبه هغه الفاظ چې په توثيق باندې دلالت کوي هغه بغير د تاکيد نه ذکر وي
لکه ثقه يا ثبت يا حجه وغيره وغيره

پينځمه مرتبه لکه صدوق يا مامون يا ليس به باس يعنې فلانې راوي باندې څه باک
نشته
يا لا باس به
بدر بن جماعه په خپل کتاب المختصرکې فرمايي : ابن معين فرمايي چې زه کله د يو
راوي باره کې لا باس به يا ليس به باس ووايم نو هغه به ثقه وي

شپږمه مرتبه : هغه الفاظ چې په هغې دا ګمان کيږي چې د جرح الفاظ دي او دا د
توثيق ادنی مرتبه ده
پدې مرتبې باندې دلالت کونکې الفاظ په لاندې ډول دي
فلان ليس ببعيد عن الصواب فلانې د حق څخه لرې ندې شيخ شيخ دې يعتبر به معتبر
دې شيخ وسط درمياني شيخ دې روی عنه الناس
خلکو ترينه حديث روايت کړی صالح الحديث د حديث د روايت کولو لايق دې
يکتب حديثه دده حديث ليکلی شي مقارب الحديث دده احاديث د نورو ثقاتو د
احاديثو قريب دي صويلح صالح ګوټې دې صدوق ان شاالله ارجو ان لا باس به زما
اميد دې چې فلانې راوي قابل اعتراض ندې
سخاوي فرمايي : ددې مراتبو والاو رواتو حکم دادې چې اولنې څلور مراتب والا
راويان حجت دي د پينځمې مرتبې والا راويان خو حجت ندي ليکن د هغوی احاديث
په متابعاتو او شواهدو کې کارکوي
او د شپږمې درجې والا راوي درجه د پينځمې څخه کمه ده بعضې محدثين د اعتبار په
غرض ددې قسم رواتو احاديث ليکي

# د جرح مراتب

اولنی مرتبه : هغه الفاظ چی په مبالغه باندی دلالت کوی لکه فلان اکذب الناس فلانی راوی د ټولو نه ډیر دروغجن دی الیه المنتهی فی الکذب فلانی راوی په دروغ ویلوکی خصوصیت لری هو رکن الکذب یا معدنه هغه ددروغو رکن دی یا ددروغو معدن دی

دویمه مرتبه چی د اولی مرتبی نه کمه وی اګرکه په مبالغه باندی دلالت کوی لکه فلان دجال فلانی راوی دجال دی یا کذاب سخت دروغ وایی وضاع د ځانه احادیث جوړونکی دی دغه شان یضع الحدیث یا یکذب دروغ وایی

دریمه مرتبه : فلان متهم بالکذب او بالوضع فلانی راوی متهم بالکذب دی یعنی په عامو خبروکی درواغ وایی یا یسرق الحدیث حدیث پټوی

یا ساقط دی یعنی محدثین ورله هیڅ اعتبار نه ورکوی یا متروک یعنی محدثینو ده لره پریخی دی یا هالک هلاک دی یا ذاهب الحدیث په حدیث کی خلط ملط کوی یا ترکوه فلانی راوی محدثینو پریخی دی یا لا یعتبر به هیڅ معتبر ندی یا لیس بثقه ثقه ندی

څلورمه مرتبه : لکه فلان رد حدیثه د فلانی راوی احادیث ردکړی شوی دی یا مردود الحدیث احادیث یی مردود دی یا ضعیف جدا هغه ډیر ضعیف دی یا واه بمره حتمی طور سره ضعیف دی یا طرحوه فلانی راوی لره محدثینو لری ګوزارکړی دی لا یکتب حدیثه فلانی راوی ددی لایق ندی چی احادیث یی ولیکلی شی یا لا تحل الروایه عنه یعنی ددی څخه روایت کول حلال ندی یا لیس بشی د فلانی روای هیڅ حیثیت نشته امام سخاوی په شرح الفیه کی فرمایی : ابن القطان فرمایلی دی کله چی ابن معین د یو راوی باره کی ووایی لیس بشی نو ددی مطلب به دا وی چی هغه قلیل الحدیث دی داسی خبره د فتح الباری په مقدمه کی هم ذکر ده

پینځمه مرتبه : لکه فلان لا یحتج به فلانی راوی حجت ندی یا ضعفوه محدثینو دیته ضعیف ویلی دی یا مضطرب الحدیث حدیث کی یی اضطراب دی یا ضعیف دی یا له ما ینکر ددی بعضی احادیث منکر دی یا له مناکیر د اول په معنی یا منکر الحدیث امام ذهبی د ابن بن جبله کوفی او سلیمان بن داود یمامی په ترجمه کی لیکی امام بخاری فرمایی کله چی زه د یو راوی باره کی ووایم منکر الحدیث نو د هغه نه روایت به حلال نه وی

شپږمه مرتبه : لکه فلان فیه مقال فلانی راوی باندی کلام دی یا ادنی مقال معمولی شان کلام دی یا ینکر مره ویعرف مره کله منکر احادیث روایت کوی اوکله معروف یا لیس بذاک د هغی درجی والا ندی یا لیس بالقوی قوی ندی یا لیس بالمتین مضبوط ندی یا لیس بحجه حجت ندی یا لیس بعمده معتبر ندی یا لیس بالحافظ حافظ ندی یا فیه شی پدی کی څه مساله شته یا فیه جهاله پدی کی جهالت دی یا سیی الحفظ دکمزوری ذهن والا دی

یا لین الحدیث دده په حدیث کی کمزوری ده یا فیه لین دی کی کمزوری ده

د لاندینی اصطلاحاتو تعلق هم ددی مرتبی سره دی

فلان تکلموا فیه د فلانی راوی باره کی علماو جرح کړی ده

یا فلان فیه نظر فلانی کی نظر دی

یا فلان سکتوا عنه د فلانی باره کی محدثینو سکوت اختیارکړی دی

ددی اخری دوه اصطلاحاتو مرتبه د امام بخاری نه علاوه د نورو علماو په نزد باندی شپږمه ده

حافظ عراقی د الفیه په شرح کی لیکی امام بخاری دا دوه اصطلاحات د هغه راوی باره کی استعمالوی چی محدثینو د هغه احادیث پریخی وی

امام سخاوی په شرح د الفیه کی فرمایی : ددی مراتبو باره کی حکم دادی چی اولنی څلور مرتبو والا راویان قابل حجت ندی او نه د اعتبار او استشهاد به طور ددوی احادیث پیش کول جایز دی

او د پینځمی او شپږمی درجی والا راویانو احادیث په اعتبار او شواهدو کی اغستلی شی

# د نومونوکنیتونو القابو او موالی پیژندنه

ددی هم ضرورت دی چی دکنت والا راویانو نومونه او د نومونو والا راویانوکنیتونه وپیژندل شی ځکه‌کله راوی د نوم سره اوکله دکنیت سره ذکرکیږی او ددی نوع نه د جهالت په وجه یوکس پدی صورت‌کی په یو راوی باندی ددوه‌کسانوګمان‌کوی

ددی نوع ډیر اقسام دی

۱ هغه راویان چی دکنیت سره نه بلکی په نوم سره مشهور وی یا بر عکس

لکه طلحه بن عبدالله عبدالرحمن بن عوف حسن بن علی په نوم باندی مشهور دی او ددوی د هر یوکنیت ابو محمد دی

او لکه ابو ادریس خولانی ابو اسحاق سبیعی دا دواړه په‌کنیت باندی مشهور دی د اولنی نوم عایذ الله دی او ددویم نوم عمرو دی

۲ هغه راویان چی د هغوی نومونه د هغوی‌کنیتونه دی لکه د شریک څخه روایت کونکی راویان ابو بلال اشعری او ابو حاتم رازی څخه روایت‌کونکی ابو حصین دی واړو راویانو ویلی دی چی ددوی نوم اوکنیت یو دی یعنی ددوی‌کنت ددوی نوم دی

۳ هغه راویان چی د هغوی  د نوم باره‌کی اختلاف وی لکه د ابو هریره رضی الله عنه د نوم او د هغه د پلار نوم باره‌کی چی اختلاف دی او دی‌کی تقریبا ۳۰ اقوال دی راجح مسلک دادی چی دده نوم عبدالرحمان بن صخر دی

۴ هغه راویان چی د هغوی دکنیت باره‌کی اختلاف دی لکه د اسامه بن زید دکنیت باره‌کی اختلاف دی

بعضی وایی ابو خارجه بعضی وایی ابو محمد او یو قول دادی چی ابو عبدالله دی

۵ هغه راویان چی دهغوی‌کنیتونه بیشماره وی لکه د ابن جریج دوه‌کنیته دی ابو خالد ابو الولید

۶ هغه راویان چی د هغوی‌کنیتونه د هغوی د پلار د نومونو پشان وی یا برعکس لکه ابو مسلم اغر بن مسلم المدنی‌کوم چی د ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت‌کوی

دغه شان ابو اسحاق بن اسحاق او ددی برعکس اسحاق بن ابی اسحاق السبیعی
۷ هغه راویان چی د هغوی د پلرونو نومونه د هغوی د استاذانو د نومونو پشان وی لکه ربیع بن انس چی د انس بن مالک رضی الله عنه شاګرد دی
۸ هغه راویان چی د هغوی د شاګردانو نومونه د هغوی د استاذانو د نومونو پشان وی لکه د امام بخاری شاګرد امام مسلم او د هغه استاذ مسلم بن ابراهیم فراهیدی
ددی علم څخه نا خبره انسان پدی سند باندی حدثنا مسلم عن البخاری عن مسلم دی د مقلوب ګمان کوی حالانکه دا صحیح دی
۹ هغه روایان چی د هغوی نومونه د هغوی د استاذانو او د استاذانو د استاذانو د نومونو پشان وی
لکه عمران عن عمران عن عمران اولنی عمران قصیر دی او دویم ابو رجا دی او دریم عمران بن حصین صحابی دی
۱۰ هغه راویان چی د هغوی نومونه د هغوی د پلارانو او نیکونو د نومونو پشان دی
لکه الحسن بن الحسن بن الحسن بن علی
۱۱ هغه راویان چی د هغوی کنیتونه د هغوی د ښځو د کنیت په څیر وی
لکه ابو ایوب او ام ایوب
لکه څنګه چی دکنیت څخه خالی نومونو او د نوم څخه خالی کنیتونو پیژندل ضروری دی دغه شان د هغه نومونو القابو اوکنیتونو پیژندل هم ضروری دی چی مفرد وی او د مفرد دا معنی چی د هغی مسمی یو وی
د مفرد نومونو مثال :احمد بن عجیان سندر مولی ذنباع جذامی یعنی عجیان او سندر یو نوم دی
د مفرد کنیتونو مثال :ابو العشرا ددی نوم اسامه دی ابو العبدین ددی نوم معاویه دی د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه شاګرد دی
د مفرد القابو مثال: د نبی علیه السلام غلام سفینه چی ددی نوم عمیر یا مهران یا صالح دی سحنون عبد السلام بن سعید قیروانی

د رواتو د اسما اوکنیتو سره سره د هغوی د نسب او لقب پیژندل هم ضروری دی

لقب کله د اسم په صورت کی وی لکه د نبی علیه السلام د خادم سفینه اوکله دکنیت
په صورت کی وی لکه د علی رضی الله عنه لقب ابو تراب
دغه شان د راویانو نسبت د هغوی نقصان یا دکاروبار طرفته وی
لکه اعرج ګوډا الخیاط درزی البزازکپړه خرخونکی
نسبت کله د راوی قبیلی طرفته کیږی لکه القرشی الدوسی اوکله کله د وطن طرفته د
وطن څخه مراد هغه ځای چی راوی پکی اوسیږی
یا کلی یا محله لکه البغدادی الضیعی القطیعی الدارقطنی
قطیعه وړو ته وایی او دار قطن او بغداد ددوه ځایونو نوم دی
بعضی وخت کی د راوی نسبت د خپل پلار نه بغیر بل چا طرفته کیږی
لکه مقداد بن اسود ددی نسبت ځکه د اسود طرفته شوی دی چی ځکه دا د هغه په
کفالت کی وو او هغه متبنی ګرځولی وو
او د مقداد د پلار نوم عمرو بن ثعلبه دی
کله کله نسبت د مور طرفته وی لکه بلال بن حمامه ددی د پلار نوم رباح دی
او اسماعیل بن علیه ددی د پلار نوم ابراهیم بن علیه وو چی د ولا د وجی نه اسدی
دی
بعضی وخت کی نسبت د هغه شی طرفته کیږی چی ذهن یی نه قبلوی لکه خالد الحذا
د حذا معنی ده موچی د د نسبت وجه داده چی دا به د موچیانو سره کیناسته
کله کله انساب د لقب په صورت کی واقع کیږی لکه خالد بن مخلد القطوانی
قطوانی د قطوان طرفته منسوب دی او ددی معنی ده د اوړدو قدمونو والا انسان
د القابو او انسابو د اسبابو پیژندل هم ضروری دی ځکه کله دا اسباب د ظاهر خلاف
وی
لکه معاویه بن عبدالکریم الضال ځکه دا مکه مکرمه په لارکی ورک شوی وو دغه
شان عبدالله بن محمد الضعیف
ځکه دا د بدن لحاظ سره کمزوری وو
عبدالغنی بن سعید فرمایی دا مذکوره دوه کسان ډیر عظیم شخصیات دی لیکن لقبونه
یی بد رنګه دی

او الحسن بن یزید القوی ځکه دا په عبادت کی قوی وو
په مصطلح کی لفظ د قوی د راوی په توثیق باندی دلیل دی
او ابو مسعود عقبه بن عمرو البدری دیته بدری ځکه وایی چی دا په مقام بدر باندی مقیم وو
او په غزوه بدر کی شریک شوی نه وو کومه چی ددی لفظ ظاهری معنی ده

د سابقه بحث پشان د علماو ښخه موالی او د موالی ښخه د ورونو او خویندو پیژندل ضروری دی

## د ولا اقسام

### د ولا دری اقسام دی د ولا لفظی معنی ده رشته داری

۱ ولا العتاقه د ازادی په بنا باندی تعلق ۲ ولا الاسلام د اسلام په بنا باندی تعلق ۳ولا بالحف د معاهدی په وجه تعلق

**۱ولا العتاقه** په ولا کی دا تعلق ډیر زیات وی اکثر راویان ددی په وجه هغی قبیلو ته منسوب دی چی هغوی ازادکړی دی کله لیث بن سعد مصری فهمی مولی فهم

**۲ ولا الاسلام** کله چی یوکس د بل چا په لاس باندی اسلام قبول کړی نو د هغه قبیلی طرفته دده نسبت کیږی لکه محمد بن اسماعیل البخاری الجعفی د جعفی د نسبت وجه داده چی د بخاری نیکه مغیره د یمان بن اخنس جعفی په لاس مسلمان شوی وو دی وجی نه یی د هغه قبیلی طرفته نسبت کیږی

**۳ ولا بالحلف** حلف د محالفه ښخه دی یعنی په نصرت او تایید سره د یو بل سره معاهده کول لکه امام مالک بن انس اصحبی تیمی ولا ددوی جماعت د قریشو د قبیلی تیم سره د معاهدی په وجه د هغوی موالی ګرځیدلی وو ددی نسبت یوه وجه دا

هم بيا شوی ده چی دده نيکه مالک بن ابی عامر د ابو طلحه مزدور وو او ابو طلحه تيمی وو

د مولی اعلی او اسفل دواړو دپاره د مولی لفظ استعمالیږی
د مولی اعلی نه مراد معتق ازادونکی محالف دچا سره چی معاهده شوی وی هغه کس چی د هغه په لاس بل مسلمان شوی وی
او د مولی اسفل نه مراد عتيق ازادکړی شوی محالف معاهده کونکی هغه کس چی د بل په لاس مسلمان شوی وی

## د راويانو څخه د موالي او وروڼو خويندو د معرفت فوايد

په اشتباه کی د پریوتو څخه بچ کيدل په متعدد راويانو باندی د يوګمان څخه بچ کيدل چونکه بعضی وخت کی د راويانو دپلرونو نومونه يو شان وی نو د هغوی ځامنو د هغوی وروڼه ګنړلو څخه بچ کيدل
لکه عبدالله بن دينار او عمرو بن دينار دا دواړه د يو طبقه نه دی او وروڼه ندی
حدیث ليکل د هغی موازنه کول د هغی بيانول او د حصول لپاری يی سفرکول
کتابه الحديث په انتهايی واضح خط سره يی ليکل په مشکل الفاظو باندی نقطی اچول او ممکن وی نو ساقط حروف د صفحی ښی يا چپ طرفته ليکل ديته کتابت حديث وايی
**سماع الحديث** ددینه مراد د استاذانو څخه احاديث حاصلول دی ددی شرط دادی چی شیخ به پخپله احاديث لولی یا به په هغه باندی لوستلی کيږی بهر حال طالب علم به د سماع په وخت کی متوجه کيږی او داسی شی د ليکلو يا لوستلو څخه به اجتناب کوی چی سماع کی خلل اچوی

**عرض الحديث** ددی دری صورتونه دی ۱ چی د طالب علم د احاديثو د شيخ سره تقابل کول برابره ده که د شيخ د اصل څخه وکتل شی اوکه پخپله حافظه باندی اعتماد وکړی

۲د طالب علم تقابل او جایزه د شیخ نه علاوه د بل ثقه راوی سره کول ۳ طالب علم پخپله د شیخ د اصل نسخی یا فرع سره د خپلو احادیثو تقابل وکړی

اسماع الحدیث یعنی د استاذ خپلو شاګردانو ته احادیث بیانول ددی شرط دادی چی شاګرد به متوجه کیږی او داسی شی کی به نه مشغولیږی چی د احادیثو په اوریدلوکی خلل اچوی نیز د شیخ بیانول به د اصل نسخی یا د هغی سره د تقابل شوی نسخی څخه وی که چیرته شیخ معذور وی نو د خپلو احادیثو د بیانولو اجازت دی بل چاته ورکړی او دا کمی دی پوره کړی

# د حدیث په طلب کولوکی سفرکول

د خپلی علاقی د محدثینو څخه د احادیثو د پوره حصول نه پس راوی نورو ملکونو ته دحدیث د متن او سند د حصول په وجه سفرکوی کوم چی دده سره نه وی

## د احادیثو تصنیف کول

کوم کس چی د حدیثو د تصنیف کولو قدرت لری هغه باندی لازم دی چی دی میدان کی کار وکړی دی لپاره چی متفرق احادیث راجمع کړی او په بعید لری علاقوکی ښپاره احادیث نژدی کړی د مشکل احادیثو بیان وکړی او د مجمل احادیثو وضاحت وکړی او د هغی پوری به خپل کتاب پخپل کنټرول کی ساتی چی څو پوری یی ښه مهذب او مرتب شکل نه وی ورکړی او بار بار یی پکی کتلی نه وی
او په خپل تالیف کی داسی موضوع اختیارکړی چی فایده یی عامه او زیاته وی

## د مصنفاتو اقسام

الجوامع المسانید المعاجم العلل الاجزا الاطراف المستدرکات المستخرجات

**۱ الجوامع جامع** هغه کتاب دی چی په لاندینی موضوعاتو مشتمل وی عقاید احکام رقاق طعام شراب د سفر قیام او قعود اداب تفسیر سیرت تاریخ مناقب مثالب لکه د امام بخاری الجامع الصحیح

**۲ المسانید مسند** هغه کتاب دی چی هغی کی د هر صحابی احادیث جدا جمع کړی شوی وی او د احادیث د حسن او صحت او د باب سره د مناست لحاظ پکښی نه وی لکه مسند احمد

**۳معاجم** هغه کتابونه چی هغی کی احادیث د استاذانو به ترتیب سره ذکر شوی وی او اکثر دا ترتیب د حروف هجا مطابق وی لکه د امام طبرانی دری معاجم

**۴العلل** هغه کتابونه چی هغی کی معلول احادیث جمع کړی شوی وی او د هغی د علت وضاحت کړی شوی وی لکه امام احمد دارقطنی او ابوحاتم پدی موضوع باندی کتابونه لیکلی دی

**۵ اجزا** هغه کتابونه چی هغی کی د یو صحابی یا تابعی یا د یو موضوع متعلق احادیث جمع کړی شوی وی
لکه د امام بخاری جز القرا او جز رفع الیدین

**۶ الاطراف** امام سیوطی په تدریب الراوی کی فرمایی دکتب الاطراف نه مراد دادی چی د حدیث د متن یوه حصه ذکر شی چی په ټول متن باندی دلالت کوی او ددی حدیث ټول سندونه هم ذکرکړی شی او داکار د حدیثو د ټولوکتابونو سره محیط هم کیدای شی او د بعضی کتابونو سره خاص همه کیدای شی لکه تحفه الاشراف

**۷ المستدرکات** هغه کتابونه چی هغی کی د یو مصنف څخه پاتی شوی احادیث د هغه د شرط مطابق راجمع کړی شی

لکه المستدرک علی الصحیحین د امام حاکم

۸ **المستخرجات** هغه کتاب چی هغی کی دکوم کتاب احادیث د هغی د مصنف د سند نه بغیر په بل سند سره راجمع کړی شی او ددی مصنف د هغی  کتاب د مصنف سره په شیخ یا بل بره راوی کی میلاو شی  لکه المستخرج علی الصحیحین د ابو نعیم

مستخرجینو ډیرکله  د مستخرج کتاب د متن پابندی نه ده کړی بلکی هغوی هغه الفاظ روایت کړی دی چی د هغوی د استاذانو څخه په بل سند منقول وی دی وجی نه د اصل کتاب او د مستخرج په الفاظوکی فرق شته دی دی وجی د مسترج کتاب د الفاظو نسبت تر هغه پوری اصل کتاب ته نشی کیدای تر څو چی دا معلومه شوی نه وی چی ددواړو الفاظ یو شان دی

# د شیخ او طالب العلم اداب

د شیخ او طالب علم د ادابو پیژندل هم ضروری دی
د نیت صفایی ددنیوی سازوسامان او اغراضو او مقاصدو څخه برات په خپل علم باندی عمل او د مسلمانانو د خیر خواهی او همدری صفات باید په معلم او متعلم دواړو کی موجود وی
**صرف د معلم اداب**
کله چی د حدیث بیانولو لپاره مجلس کی حاضریږی نو باید د حاضرینو طرفته دی متوجه کیږی د مجلس اغاز او اختتام به د الله په حمد او ثنا سره او په نبی علیه السلام باندی درود ویلو سره کوی که یو طالب علم په اوچت اواز خبری کوی نو هغی ته دی حکم وکړی چی اوازکم کړی ځکه د احادیثو په مجلس کی اواز اوچتول د نبی علیه السلام په مجلسل کی د اواز اوچتولو په شیر دی چی هغی نه الله منع کړی ده دی مجلس کی دی د چا په خاطر نه ودریږی په ولاړه یا جلدی کی یا د مجبوری نه بغیر

دی په لاره کی احادیث نه بیانوی که معلم ته د بوډاوالی یا د نظر ختمیدو په وجه د احادیثو د هیریوالی خدشه وی نو احادیث بیانول دی پریږدی

**صرف د متعلم اداب**

د خپل استاذ احترام او اکرام دی کوی ځکه دا کار د علم د عظمت او دهغی نه د فایده حاصلولو سبب دی د علم حاصلولو په میدان کی دی تکبر او حیا ددی لپاره مانع ونګرځی اګرکه په عمر یا قدر او منزلت کی دکم سړی نه علم حاصلول راشی د شیخ په سخت مزاجی باندی صبر وکړی

د علم د یادولو اهتمام دی کوی کوم احادیث چی یی زده کړی وی د هغی تذکره دی خپلو ملګرو سره کوی د اهل علمو سره بحث مباحثه دی کوی چی علم یی راسخ شی

عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمایی د احادیثو مذاکره په خپل مابین کی کوی ځکه دا د احادیثو ژوند دی

د عبدالله بن عباس رضی الله عنهما فرمایی لګ وخت د علم مذاکره کول د ټولی شپی د عبادت نه بهتر دی

امام زهری فرمایی د علم هیریدل اوکم تکرار د علم دافاتو څخه دی

**باقی اداب**

طالب علم دی باید احادیث په درجه درجه سره یادکړی په صحیح بخاری کی دی د وس مطابق عمل کوی

په عباداتو او ادابو باندی مشتمل احادیثو باندی دی عمل کوی او همدا عمل کول د احادیثو د یادولو سبب دی

امام وکیع فرمایی که ته غواړی چی احادیث حفظ کړی نو په هغی عمل وکړه

امام احمد فرمایی: ما به د هر حدیث لیکلو نه پس په هغی عمل کوو یوه ورځ زما مخی ته دا حدیث راغلی چی نبی علیه السلام حجامه لګولی وه او ابو طیبه ته یی یو دینار بطور اجرت ورکړی وو نو ما هم حجامه ولګوله او حجام ته می یو دینار ورکړه

د حدیث د معرفت او د هغی د معنی پیژندلو نه بغیر صرف په لیکلو باندی اکتفا نه کول د احادیثو په کتابونوکی صحیحین مقدم کول بیا بالترتیب سنن ابی داود ترمذی سنن نسایی ابن ماجه ابن خزیمه ابن حبان سنن کبری دی باندی دی اهتمام وکړی دی نه پس د مسند احمد پشان مسانیدو باندی او جوامع او دغه شان د حدیث د موضوع متعلق په ټولو لیلکل شوی کتابونو دی اهتمام وکړی

## نیز دلاندینی کتابونو څخه دی هم استفاده وکړی

علل دی کی دامام احمد دارقطنی او ابن ابی حاتم کتابونه
اسما الرجال دی کی د امام بخاری التاریخ الکبیر او د ابن ابی خیثمه التاریخ

په ضبط الاسما کی د ابن ماکولا کتاب الاکمال او په غریب الحدیث کی د ابن اثیر کتاب النهایه
او په هرکتاب کی مهارت حاصلول دی باید د طالب علم شعار وی

دکتاب خاتمه : د نبی علیه السلام سنت په ټول امت باندی حجت دی
الله تعالی فرمایی او تاسو ته چی هر څه رسول الله درکړی هغه واخلی او د څه نه چی مو منع کړی هغی نه منع شی
او یو بل مقام کی فرمایی
که چیرته تاسو د الله سره محبت لری نو زما تابعداری وکړی الله به تاسو سره محبت وکړی او ستاسوګناهونه به معاف کړی
دغه شان الله فرمایی ستا په رب می د قسم وی دا خلک تر هغه پوری ایمان والا نشی کیدای تر څو چی یی ته په هر مساله کی حاکم نه یی ګرځولی او بیا ستا د فیصلی څخه په زړه کی څه خفګان هم محسوس نه کړی
دغه شان فرمایی :کله چی ستاسو په یو مساله کی جنجال راشی نو الله او رسول ته یی ویسی که چیرته تاسو په الله او ورځ د اخرت باندی ایمان لری

او الله فرمایی کوم کسان چی د نبی علیه السلام مخالفت کوی هغوی باید ویریږی چی هغوی ته فتنه ورسیږی یا په عذاب الیم باندی مبتلا شی

دی موضوع باندی بیشماره ایاتونه دی
د ایمه اربعه او ټولو علماو په نزد د سنت ډیر قدر دی او د هغوی دا عقیده ده چی په سنت باندی د هیچا قول ته ترجیح ورکول جایز ندی
او په سنت باندی عمل کول هم د سنت تکریم او عزت دی

ابن عابدین رحمه الله په خپل کتاب کی فرمایی چی د امام ابو حنیفه څخه پّ صحیح سند سره دا خبره ثابته ده چی کله یو حدیث په صحیح سند سره ثابت شی هغه به زما مذهب وی

امام ابن عبدالبر هم د امام ابو حنیفه وغیره نورو علماو څخه اقوال ذکرکړی دی
امام مالک فرمایی د هر انسان کلام مقبول هم کیدای شی او مردود هم مګر د رسول الله هره خبره به قبوله وی
امام شافعی فرمایی کله چی صحیح حدیث ثابت شی هغه زما مذهب دی
هغه مزید فرمایی: کله چی تاسو زما خبره د حدیث مخالف مونده کړی نو زما خبره ددیوال نه وولی
او مزید فرمایی چی پدی باندی علماو اجماع کړی چی چاته د نبی علیه السلام سنت ښکاره شی نو هغه لره جایزندی چی د بل چا د وجی یی پریږدی
امام احمد خپل شاګرد ته فرمایلی وو زما تقلید مه کوه نه د مالک او نه دا اوزاعی نه د نخعی بلکی د هغه ځای نه د احکامو استنباط کوه کوم ځای نه چی هغوی کړی دی
شاه ولی الله رح په حجه الله البالغه کی فرمایی د تحقیق نه پس دا خبره معلومه شوه چی د څلورمی صدی نه مخکی کوم خاص مذهب نه وو او د کوم خاص امام د فقه یا د قول تابعداری نه وه لیکن پدی ورستنو صدیانوکی خلک ګمراه شول او تقلیدونه یی شروع کړل

مزید شاه ولی الله د عزالدین نه نقل کوی چی هغه فرمایی : دی مقلدینو فقهاو باندی تعجب دی چی د خپل امام د ضعیف قول د دفاع نشی کولی او ددی باوجود په تقلید کی پراته دی او د هغه امام خبره پریږدی چی د قران او حدیث او قیاس صحیح مطابق یی فتوی ورکړی وی بلکی د خپل امام د قول په تاییدکی قران او حدیث رد کوی او تاویلونه کوی

عزالدین رحمه الله مزید فرمایی د یو مذهب د تعیین نه بغیر به خلکو د علماو نه پوښتنی کولی او چا باندی به اعتراض نه کیده تر دی چی مخصوص مذاهب پیدا شول او دا متعصب مقلدین هم پیدا شول کومو چی د خپل امام د هغه قول تابعداری هم شروع کړه چی د قران او حدیث خلاف وی او پداسی انداز چی ګویا کی هغه نبی دی او په حقیقت کی دا د حق څخه جدایی ده او د نیغی لاری نه ګمراهی او هیڅ عقلمند پداسی تقلید باندی نه راضی کیږی
امام ابن القیم په اعلام الموقعین کی فرمایی :مونږ اکثر خلک وینو چی کله یو حدیث د هغوی د مسلک مطابق وی او د هغی حدیث د راوی موقف د حدیث مخالف وی نو دا قاعده پیش کوی د راوی روایت حجت وی نه د هغه قول لیکن کله چی د راوی قول د هغوی د مسلک مطابق وی او حدیث یی خلاف نو بیا وایی د راوی رای لره اعتبار دی نه د هغه حدیث لره
کله اولنی قاعده استعمالوی اوکله دویمه او په یو باب کی دا تناقض چی بدترین تناقض دی
مونږ چی دالله لپاره کوم مذهب اختاروو چی د هغی نه علاوه د بل مذهب هیڅ جواز نشته هغه دا چی کله د رسول الله یو حدیث صحیح ثابت شی اوکوم دویم حدیث د هغی معارض یا ناسخ نه وی نو په ټول امت باندی فرض دی چی ددی حدیث مطابق عمل وکړی
او د چا د مخالفت په وجه به مونږ دا حدیث نه پریږدو هغه کس ددی حدیث راوی وی یا بل څوک ځکه ددی امکان شته چی راوی دفتوی ورکولو په وخت کی حدیث هیر کړی وی یا پدغه مساله باندی د حدیث دلالت ورته نه وی معلوم یا هغه ددی تاویل

کړی وی یا د هغه دګمان مطابق دهغی یو معارض موجود وی یا هغه په خپله فتوی کی دداسی عالم تقلیدکوی چی هغه وایی دا زما نه بهتر دی یا د هغی داګمان وی چی دا حدیث د یو بل قوی حدیث مخالف دی
اوکه ددی ټولو احتمالاتو نفی وکړی شی نو باید وویل شی چی راوی خو معصوم ندی اګر چی ددی احتمالاتو نفی بلکی ګمان کول هم ممکن ندی
د سعدی په القاموس کی دی کله چی یو صحابی یو حدیث مرفوعا بیان کړی او د هغی علم هغه چا ته وشی چی په احکام شرعیه باندی مکلف وی نو هغه باندی لازم دی چی پدی حدیث باندی عمل وکړی البته که وروسته هغه ته یو داسی حدیث میلاو شی چی د مخکنی حدیث ناسخ وی نو هغه به په دی دویم حدیث عمل کوی
شیخ صلاح فلانی په خپل کتاب ایقاظ الهمم کی لیکلی دی : تاسو وینی چی بعضی خلک کله چی یو حدیث د هغوی د مذهب موافق وی نو هغوی پری عمل کوی د هغی تابع کیږی او په سر سترګو یی قبلوی لیکن کله چی د هغوی مخی ته داسی حدیث راشی چی د هر قسم معارضی نه خالی وی خو د هغوی د مذهب خلاف وی نو بیا د احتمالاتو دروازه کولاوکړی او د خپل امام د مذهب لپاره د ترجیح وجوهات تلاش کوی حالانکه دهغوی مذهب د صحابه کرام تابعینو او د نص خلاف وی

اوکله چی دداسی صفاتو والا انسان د حدیث شرح لیکی نو احادیثوکی تحریف کوی اوکه دا نشی کولی نو بیا بغیر ددلیل نه د هغی د منسوخوالی کوشش کوی یا چی هر څه د هغه په مریض ذهن کی راشی وایی یی
اوکه هیڅ غشی یی ونه چلیږی نو بیا دعوی کوی چی زما امام ددی روایاتو څخه خبر وو لهذا هغه دا حدیث ردکړی دی کیدای شی د هغه په نزد دی حدیث کی څه عیب وی او د هغه کرامتونه بیانول شروع کړی او دا عقیده لری چی ددی مخالفت کونکی په سمه لاره باندی ندی

اوکوم عالم چی ددی متعصب مقلد خیرخواهی وکړی نو هغه ته خپل دشمن وایی اګر که هغه ددی نصیحت نه مخکی دهغه دوست وی

که هغی ته د خپل مذهب یو داسی مشهورکتاب میلاو شی چی د هغه خیرخواهی پکی وی او د تقلید مذمت پکښی وی او د احادیثو د پیروی حکم پکی وی نو دا کتاب د خپل شاته وغورځوی او هغی باندی عمل پریږدی
شیخ فلانی د خپل شیخ محمد حیات څخه نقل کړی چی هغه فرمایی: دا خبره ثابته ده چی د علما د اصطلاح مطابق ټول صحابه مجتهدین نه وو بعضی ښاریان وو بعضی بانډه چیان او بعضو د نبی علیه السلام څخه یو حدیث اوریدلی وو یا یی صرف د نبی علیه السلام سره یو مجلس تیرکړی وی
لیکن د یو حدیث اوریدونکی صحابی به پدغه حدیث باندی عمل کوو او داسی هیڅ ثابت ندی چی غیر مجتهد صحابی ددی یو حدیث د پوهی لپاره یو مجتهد ته رجوع کړی وی
نو ددی نه ثابته شوه چی د غیر مجتهد صحابی لپاره په حدیث باندی عمل کول جایز وو او د صحابه اجماع هم پدی باندی دلیل ده
که د عمل کولو دا رخصت نه وی نو خلفا راشدینو به غیر مجتهد صحابه ته حکم کړی وی چی تاسو ته کوم حدیث درسیږی نو هغی باندی تر هغه عمل مه کوی تر څو چی مو مجتهد صحابه ته رجوع نه وی کړی
او دالله تعالی ددی فرمان هم دا معنی ده (کوم شی چی تاسو ته رسول الله درکړی په هغی عمل وکړی او د څه چی مو منع کړی د هغی نه منع شی
شیخ فلانی فرمایی زمونږ د استاذانو استاذ شیخ ابو الحسن سندی د فتح القدیر په حاشیه کی فرمایلی دی د عام کس باره کی دا ویل چی هغه به د خاص مذهب تابعداری کوی دا صحیح ندی ځکه هغه دیته رسیدلی نشی بلکی هغی باندی لازم دی چی د هغه عالم نه تپوس وکړی چی معتبر ورته ښکاری ځکه الله تعالی فرمایی د اهل علمو نه تپوس وکړی که چیرته تاسو پوهه نه لری
په بحر الرایق کی لیکلی دی عام کس د یو مجتهد تقلیدکولی شی لیکن که د عصر حاضر پشان مذاهب په کتابونوکی مدون شی نو عام کس به خپل مذهب پریږدی او یو بل مذهب به اختیاروی

شیخ محمد حیات فرمایی : پدی مذکوره خبری باندی کتاب سنت او د سلفو او خلفو اقوال دلالت کوی او ددی مخالف قول لره هیڅ اعتبار نشته ځکه هر هغه قول چی د دی مذکوره اصنافو د قول مخالف وی هغه به مردود وی
او زما په خیال دداسی قول قایل سخت متعصب دی بس الله تعالی د هغه څه توفیق بنده ته ورکوی چی پری راضی وی
د رسول الله د قول په موجودګی کی د هیچا د قول حیثیت نشته هغه چی هر څوک وی همدارنګه زمونږ د ارادی تکمیل وشو او اخرکی مونږ وایو
ای الله ته مونږ ته حق لاره وښایی او د هغی د تابعداری توفیق راکړی او د باطل لاری څخه د اجتناب توفیق راکړی
وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وصحبه اجمعین